بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله:

# يرغلګر د جهادي عزم په توپاني څپو کې

د اسلام د ستر پيغمبرﷺ دې حديث ته په کتو چې ((.......**والجهاد ماض منذ بعثني الله إلى أن يقاتل آخر أمتي الدجال، لا يبطله جور جائر، ولا عدل عادل، والإيمان بالأقدار**/رواه ابوداود ))د اسلامي امارت مجاهدين د يرغلګرو پر وړاندې په مستدامه توګه بريدونه کوي ،شپه وي که ورځ ، هوا او اقليم يخ وي که ګرم! د دوئ په روحياتو څه اغيز نه ښندي ،سره ددې چې يرغلګر عسکر د ژمي اوا وړې دوا ړو لپاره وقايوي وسايل لري او طالبان هيڅ هم نلري ،خو د طالبانو د ايمان حرارت دومره پياوړی او غښتلی دی ، چې د هوا يا اقليم تبديلي يې متين عزم نشي متاثر کولای ،پسرلي کې د نصرت ،البدر ، الفاروق او خالد بن وليد ﷺپه سپيڅلو نومونو عمليات پيلوي او چې د ژمي ساړه شي ،نو يې هم جهادي هوډ غښتلی او ضعف پکې نه راولي ،بلکې د يوه اساسي عبادت په بڼه يې جاري ساتي.

ها خوا ته کفري يرغلګر و به نورو کلنو او يخو موسمونو کې ځان د مجاهدينو له بريدونو مصئون احساساوه خو دا کال يې انديښنې ډيرې شوي او د طالبانو له ژمني جګړ ايزې ارادې څخه يې نهيلی ډيرې شوي دي ،

نيويارک ټايمز ورځپاڼې دې وروستيو کې د يوه لوړپوړي امريکايي جنرال له خولې خبر ورکړ، چې په افغانستان کې پر مقاومت بوخت طالبان به د راتلونکي ژمي په موسم کې هم د امريکايي ځواکونو او کابل حکومت پر خلاف خپلو عملياتو ته ادامه ورکړي.

نوموړي اندېښنه ښودلې چې د امريکايي يرغلګروځواکونو او په ايساف کې د غړيو هيوادونو له خوا د پوځونو د ايستلو لړۍ به طالبان د عملياتو شدت ته نور هم وهڅوي.

دغه جنرال چې نه يې غوښتل نوم يې افشا شي، زياته کړي، چې طالبان به د راتلونکي ژمي په موسم کې خپل په عملياتو کې ځيني غټ پلان شوي عمليات وکړي، لکه پر غټو قرارګاوو او يو شمېر بهرنيو سفارتونو ، يا هم پر ګڼ شمېرمطرحو سياسي اشخاصو او کانديدانو بريدونه او همداراز اقليمي شرايطو ته په پام ګڼ نور مهم اهداف به په نښه کړي، او زياته کړي يې ده ،چې کيداى شي هغوئ بيا هم دخپلې ستراتيژۍ له مخې د مخامخ جګړې څخه ځان وژغوري، او کوښښ به وکړي چې د ناټو او افغان ځواکونو سره د شونتيا تر بريده بيا هم په مخامخ جګړو ښکېل کې نه شي.

د ې امريکايي جنرال دا هم ويلي چې اوس د پخوا په شان مونږ د جګړې د دريدو موسم نه لرو ، په حقيقت کې مونږ دا ځل د ګرمۍ د جګړې څخه د ژمي جګړې ته انتقاليږو.....................

دا په حقيقت کې دمجاهدينو په نظامي او رواني ځواک ديرغلګرو ډاګيز اعتراف دی او ديرغلګرو پوځي جنرالانودا سې اظهارات دا په ډاګه کوي ،چې نور ديرغلګرو پښې افغانستان کې ښويدلي او جهادي مقاومت سره يې دمقابلې تاب له لاسه ورکړی.

مونږ پداسې حال کې چې دروان جهاد بري ته خوشبين يو ،پدې دعاء يو چې همدا کال ديرغلګرو دظلم پر تابوت دماتې وروستی مېخ ټک وهل شي او مسلمانان يې نور له شره په امان شي !

وما ذالک علی الله بعزيز




# فرهنگی غرب

بدر

تهاجم فرهنگی اندیشه و طرز تفکر خاصی را با خود دارد ، چنان که ارتش سرخ همراه خود تفکرات کمونیستی و سوسیالستی را به افغانستان وارد کرد و جمعی زیادی از جوانان و محصلان ما را به انحراف کشاند. درسالیان متمادی وقت و انرژی آنان را گرفت، بیهوده جوانان و محصلین را مشغول کرد بدون اینکه ذرهای منفعت به ملت مسلمان افغانستان رسانده باشد. امروز هم نیروهاي صلیبی با شعارهایي مانند آزادي، دموکراسي، حقوق زن، انواع و اقسام تفکرات انحرافی، پوچ گرایی و اباحه گری را تبلیغ می کنند. علاوه برآن مبلغان مسیحی تحت پوشش مؤسسات آموزشی و خیریه به تبلیغ آیین منسوخ شده مسیحیت می پردازند. کشورهایصلیبی به همان میزان که به دنبال اهدافی نظامی هستند ، برای سیطره فرهنگی خود نیز تلاش می کنند.اما تهاجم فرهنگی، خطرناکتر از حمله نظامي است، همه این موارد باعث می شود که تهاجم فرهنگی آثار مخربتری داشته باشد و در خیلی از موارد کارسازتر ازحمله نظامی است. اگر در برابر آن به درستی مقابله صورت نگیرد آگاهان و دلسوزان این ملت ستم کشیده احساس مسؤلیت نکنند بسیار زود هویت فرهنگی خود را از دست خواهیم داد. در کشوری که مورد حمله قرار گرفته، ممکن است حملات نظامی به پایان برسد خاتمه پیدا کنند ؛ ولی تهاجم و سیطره فرهنگی سالیان سال در آن جامعه، سیطره داشته سرانجام تمام ارزشها ، باورها و هویت فرهنگی جامعه را به چالش میکشد. با تجاوز نیروهای صلیب در افغانستان، فرهنگ غرب نیز بسیار سریع تر از آن چیزی که انتظارشمیرفت در حال گسترش و توسعه است.

لشکر صلیب در هر کجا که قدم های منحوس خود را گذاشته با خریداری عده ای از اشخاص دین فروش، سیاستمداران خاین.... تلاش ورزیده تا این ذهنیت را در جامعه تحت نفوذ خود به وجود بیاورد که دیگر تاریخ و فرهنگ اسلامی آنان که بازمانده نیاکانشان است، چیزی جز توحّش و عقب ماندگی به بار نیاورده و چیزی که بتوان بدان افتخار کرد در دست شان نیست. اگر ملتها بخواهند به مدنیّت و پیشرفت برسند بایستی به فرهنگ کشور های غرب صلیبی دست یابند پذیرای فرهنگ و زبان آنها باشند. هر کس که فرورده های مادی و صنعتی آنان را بیش تر مصرف کند متمدّن تر است. زیرا تا ملّتی نخست از خود بیگانه نگردد و فریفته فرهنگ و صنعت دشمننگردد و نسبت به دین و مذهب خود احساس حقارت نکند دشمن نمی تواند در او طمع ورزد و او را بشکند.... برای بهره کشی فرد باید شخصیت او را سلب کنند ، او را به آنچه که مال خودش استبد بین کنند و در عوض او را شیفته هر آنچه از ناحیه استعمار عرضه می شود بسازند..... استعمار به هر کجا پا گذاشت پوچ شماری و هیچ انگاریفرهنگ آن ملت در صدر کارهایش بوده و است.

در این دوازده سال که گذشت عوامل مزدور و غرب زده غرب با زبان و قلم و هنر در صدد پدیدآوری حالتی در ملت مسلمان افغانستان بوده اند تا به آنانبباورانند که بایستی رو به غرب داشته باشند و از آداب و رسوم خود دست بردارند وآنچه مورد پسند غربیان است بپسندند و آنچه را که آنان نمی پسندند نپسندند. کسانی راکه آنان دوست می دارند دوست بدارند و آثاری را که آنان با علاقه می خوانند بخوانند.آنچه را آنان در کانون توجه قرار می دهند در کانون توجه قرار دهند. که اینها نشانهزندگی نو و بر آمدن از ارتجاع و تاریکی و گام نهادن در دنیای جدید غرب صلیبی است !

سلامت خانواده و عفت و عصمت زنان و مردان بزرگ ترین سرمایه مسلمانان و مهمترین مانع بر راه نفوذ استعمار صلیبی در سرزمینهای اسلامی بوده و است. استعمار غرب صلیبی برای ورود بهسرزمینهای اسلامی بستر سازی می کند و به فساد و فحشا دامن می زند. طرح مسائلی چونفمنیسم و آزادی زنان در کشور عزیزمان افغانستان برای دفاع از حقوق زنان انجام نمی گیرد ، بلکهبرای استفاده ابزاری از زن و دامن زدن به هواهای نفسانی جوانان پی گیری می شود. چراکه نسلی که دغدغه آزادی و مسائل اجتماعی دارد و برای استعمار خطرناک است نسل جواناست. رواج سرگرمیهای گوناگون و آزادیهای جنسی بهترین وسیله ای است برای کشاندن جوانان به وادی بحران جوانی و به

فراموشی سپردننیازهای اساسی آنان. چنانچه نقشه ای کهمسیحیان برای تصرف اندلس (اسپانیای فعلی) و بیرون کشیدن آن از دست مسلمین کشیدند این بود: به صورت دوستی و خدمت وسائل عیاشی برای آنها فراهم کردند. باغها وبوستانها را وقف مسلمین ساختند ، شراب نوشاندن مسلمین شد ،مسلمین به دختران زیبا و طناز که دام پهن شده ای از طرف مسیحیان بود در کوچه و بازار بهدلربائی و عاشق سازی پرداختند ، سرگرمیهای شهوانی از هر جهت فراهم شد و روح ایمان وجوانمردی مُرد. پس از این جریان بود که توانستند مسلمانان را بی درنگ از دم تیغبگذرانند.

ای ملت مسلمان افغانستان !

شهر کابل، سرزمین عبدالرحمن بن سمرة، مدفن صحابه،..... به محل فساد و عیاشی تبدیل شده است. از هر گوشه شهر، دعوت شیطان به گوش می رسد. صدای موسیقی و آواز رقاصان شرقی و غربی گوشها را آزار میدهد. شراب نوشی، مخدرات، عیاشی و هرزه گوئی، بد اخلاقی و بی ادبی نُقل مجالس جوانان شده. زنان بد لباس و هرزه گرد با بیشرمی تمام در کوچه و بازار گشت و گذار دارند ،و در تلویزیونها ظاهر داده میشوند و با لباسهای غربی به آواز خوانی و رقاصه گری میپردازند تا احساسات شهوانی جوانان برانگیخته شود. جوانان در مرداب شهوت گیر افتاده اند و حتی مرتکب فعل شنیع زنا با محارم شده اند.(و لاحول و لا قوة الا بالله )سطح جرایم چونزنا ، شراب نوشی، قمار، سرقت، اختطاف، قطاع الطرقی.... به طور سرسامآور آن افزایش یافته است.

مزدوران صلیبی چنان در لذّت بردگی و نوکری اتحاد صلیبی سرمست گشته اند که، توان درک حقیقت را ازدست داده اند. مؤسّسات خارجی به اسم کمک رسانی به جلب و جذب مردم جهت جاسوسی و نوکری مشغول می باشند. اکثر مؤسّسات خارجی کارمندان خود را از بین دختران۱۵- ۲۵ ساله انتخاب و استخدام می نمایند.گروهی دیگر از سازمانهای به اصطلاح کمک رسانی، دارای کارمندان دختران جوان می باشند که با دادن هدیه به آنان، خویشتن را در اختیار صلیب گذاشته وبه انتشار انواع بیماری های جنسی از جمله ایدز در این جامعه ی مسلمان و سالم می پردازند. نوکران اتحاد صلیبی دختران را همچون اجناس بی ارزش، در مقابل چند دالر در آغوش باداران صلیب خویش قرار می دهند. و همچنان، گروههای تبشیری (مبلّغین مسیحی) با دادن هدایا و امتیازات ویژه، هر

روز تعدادی از مردم ضعیف الایمان را در بدل پول مسیحی می نمایند. هر روز هزاران نسخه انجیل به زبان دری وارد افغانستان شده و در بین مردم بصورت رایگان توزیع می شود.

ای جوانان مؤمن و با غیّرت امّت محمّد(ص)، آنچه مسلّم است این که عزّت و پیروزی امّت اسلامی به جز در سایه ی جهاد امکان ندارد. امروز نقطه ی اتّصال آسمان و زمین میادین جهاد و سنگرهای مبارزه بر علیه ی دشمنان دین اسلام می باشد.

ملّت مسلمان افغانستان از آزمونهای بزرگ تاریخ سر افرازانه بیرون آمده است و اتحاد صلیبی، خواهان به فساد و فحشاء کشاندن و خاموش نمودن جذبه ی جهاد، غیرت و ایمان این ملّت می باشند.اما غافل از اینکه مادران افغانی به فرزندانشان شیر غیرت نوشانده و لالایی شهادت در گوششان زمزمه می نمایند.شیر زنانی که هنگامی که جنازه ی فرزندش را مشاهده می نماید که از پشت سر گولوله خورده، جنازه ی فرزند را با پا تکان داده و می گوید: این فرزند من نیست، زیرا از پشت سر گلوله خورده و رو به دشمن نبوده، تا سینه اش سپر آماج گلوله های دشمنان شود.آری، شیر زنان افغان از به دنیا آوردن شیر مردانی که عزّت و افتخار را بار دیگر برای این امّت مسلمان و مجاهد به ارمغان آورده، عقیم نگشته اند و افغانستان سرزمین اسلامی باقی خواهد ماند .اما نسل حاضر باید بدانند، اگر در راه دین، ناموس و وطن اسلامی، لحظه ای غفلت ورزند ، تاریخ به آنان نفرین خواهند گفت و برای هیشه با نام بسیار شرم آوری یاد خواهند کرد و آیندگان بجز لعن و نفرین، چیزی بر آنان نثار نخواهند کرد.

ملّت مجاهد و مؤمن افغانستان !خداوند برای نصرت دینش نیاز به ما ندارد ماییم که نیاز شدید به نصرت دین خداوند داریم. قبل از آنکه خداوند بنا بر سنت الهی خویش که: (ان الله لا یغیر ما بقوم حتی یغیرو ما بأنفسهم)، شما را دچار خواری و ذلّت نماید. بپا خیزید وبا خون خویش عزّت و افتخار و سعادت همیشگی را برای خود و ملّت مسلمان خویش به ارمغان بیاورید.

# د کابـــــــل حکومت عدلي ارګانونـــــه د مــــــذهبي ارزښـــتونو پـــه ضـــد فعاليـــت کوي

عبدالرحيم ثاقب

د روان ۱۳۹۲ هــ ش کــال دلــړم دمياشتې په دولسمه نيټه پژواک خبري اژانس رپوټ ورکړ چې له کابل نه د عدليه وزارت او لويې ښارنوالۍ ليږل شوي پلاوي په غزني ښار کې د نجونو د لويې لېسې (جهان ملکې) زده کوونکيوته د عامه پوهاوي په نوم پروګرام کې ناسمې ښوونې کوي.

نوموړي اژانس دخبر دکره والي پـه غـرض د جهـان ملکـې لېســې د يوولسـم ټـولګي زده کـوونکې زحـل (تنها) په حواله ليکي چې په نوموړي پروګرام کې د عدليـه وزارت او لـويې ښـارنوالۍ پـلاوي د دغـه ښـوونځي ښځينه زده کوونکيو ته وايي ((چې د پلار، مـور او يـا هـم د کـور د مشـر خبـره مـه منئ، هـر څـه چې کـوئ دا ستاســې حــق دی، افغــان دولــت او نړيواله ټولنه ستاسې تر شا ولاړه ده او ستاسې ملاتړ کوي.))

دجهان ملکې ښځينه ښوونځي دغـه زده کـوونکې وايـي چـې د يـاد پلاوی غړي غواړي زمونږ اسلامي او افغاني کولتور له منځه يوسي او پر ځـای يــې غربــي او پــردی کولتــور رابانديې تحميل کړي.

زحل (تنها )د کابل د عدلیه وزارت او لویې څارنوالۍ د پلاوي لخوا د عامه پوهاوي پروګرام په اړه وايي چې: ((مونږ ته د عامه پوهاوي تر نوم لاندې ویل کیږي، هر څه چې مو زړه غواړي ویې کړئ، د خپلې خوښې هلک سره مینه وکړئ، په خپله خوښه جامې واغوندئ او که چېرې کورنۍ اجازه نه درکوله وتښتئ، ستاسې لپاره د امن خونې شته.))

د پژواک خبري اژانس په حواله یوائې زحل نه ، بلکې د دغې لیسې نورې زده کوونکې هم د عامه پوهاوي په نوم پروګرام په اړه وايي چې هغوئ ته پکې د افغاني او اسلامي سپیڅلیو عنعناتو خلاف روزنه ورکول کیږي او ور ته ویل کیږي چې تاسې باید په خپله خوښه ژوند وکړئ.

د پژ واک اژانس ریپوټ له مخې د غزني د پوهنې رییس محمد عابد عابد هم دا مني، چې له کابله د عدلیې او څارنوالۍ له لوري پلاوی راغلی ، او د جهان ملکې زده کوونکو ته د مدني قانون او میرمنو د حقونو په اړه په بېلابېلو برخو کې عامه پوهاوی ورکړي ، چې د دغه پروګرام په اړه موږ ته شکایتونه راغلل اوس مو دغه روزنیز پروګرام بند کړی دی.

پژواک د خپل ریپوټ په وروستۍ برخه کې لیکي چې د غزني د استیناف څارنوالۍ رییس عبدالرشید عابد د جهان ملکې په لېسه کې له دغه روزنیز پروګرامه ناخبري وښوده..

که څه هم چې په افغانستان باندې د امریکایانو تر یر غل وروسته ډیرې داسې پیښې تر سترګو شوې چې په هغوکې د بهرنیو مؤسسو د تعلیمي او تربیوي پروګرامونو له لاري افغان زده کوونکو ته داسې څه ورښودل کیږي چې هغه د اسلام دسپیڅلي دین له اساساتو او افغاني کولتور سره په ټکر کې وي ، چې دهمدغو مؤسسو له لارې دمسیحیت تحریف شوي دین ته د افغانانو دعوتول او د اسلامي شریعت په ځینو احکامو باندې دهغوئ له لوري انتقاد کول یې ښکاره بیلګې دي.

خو دا لومړی ځل دی چې د کابل په اصطلاح اسلامي دولت د رسمي ارګانونو عدلیه وزارت او لویې څارنوالۍ لخوا د اسلام دمقدس دین د اساساتو او افغاني مسلمانې ټولنې د د رنو عنعناتو په خلاف په ښکاره ډول داشاني تبلیغات ترسره کیږي.

عدلیه وزارت او لویه څارنوالۍ هغه قانوني او قضایي مراجع دي چې که نور ارګانونه د شریعت او قانون خلاف ورزي کوي نو د دغو باصلاحیته وزارتونو له لارې

به تر قانوني مواخذې لاندې نيول کيږي ، خو زمونږ هيواد چې د امريکايي ډيموکراسي له برکته هرڅه ورکې سرچپه روان دي خپله همدغه عدلي او قضايي ارګانونه د اجنبيانو د رضايت په خاطر داسې کړنې ترسره کوي چې هغه په ښکاره ډول د اسلام د مقدس دين له احکامو او افغان مسلمان ولس له اخلاقي عنعناتو سره په مغايرت کې وي.

د کابل د رژيم ټول هغه اداري تشکيلات چې د مذهب او قانون ترنامه لاندې فعاليت کوي ترنوروهغو زيات د صليبي او کفري عقائدو په ترويج او خپراوي کې ښکيل دي.

د کرزي د رژيم ستره محکمه ، عدليه وزارت لويه څارنوالۍ ، د حج او اوقافو وزارت او تش په نوم د علماوو شورا چې له يوه پلوه مذهبي او قضايي مراجع ګڼل کيږي په افغانستان کې دامريکايي اشغال لپاره په چوپړ لګيا او د پخواني کمونيست رژيم د شؤن اسلامي ادارې په څير ټولو هغو فرامينو ته مذهبي توجيهات برابروي کوم چې د کرزي داجنبي پلوه نظام لخوا د اشغالګرو امريکايانو په ګټه صادريږي.

همدا اوس اوس چې له امريکايانو سره د کرزي لخوا د امنيتي تړون دسيسه روانه ده تر بل هر ارګان له مخه دتش په نوم علماوو شورى لخوا دهمدې سازشي تړون په لاسليکولو ټينګار شوی او هغه يې دافغانستان او افغانانو په ګټه بللی.

همدا راز د امريکايانو په مشرۍ دنړيوال کفر لخوا د افغانستان اشغال د علماوو د شورى پخواني مشر فضل هادي شينواري په باطله فتوا تائيد اوهغه يې د افغانستان يو ضرورت بللی.

خو که له يوې خوا يو شمير بې ضميره او ځان پلورلي اشخاص له مذهبي حيثيت او خپل علمي مقام نه په استفادې سره په افغانستان باندې داجانبو اشغال ته دجواز او تداوم لارې برابروي له بلې خوا بيا په اسلامي افغانستان کې داسې په حق مين مجاهد علماء هم شته چې د خپلو مبارکو وينو په بيه دوطن له پاک حريم نه دفاع کوي او په دې سپيڅلې لارې کې تر بل هرچا دوئ زياتې قربانۍ ورکړې دي.

لهذا د کابل د تش په نوم اسلامي حکومت چار واکي او د هغوئ کفري ملاتړي دي دا خبره زړه ته واچوي چې افغانستان د مسلمانانو هيواد او د لته يواځې هغه څه دتعميل وړدي چې داسلام دسپيڅلي دين له اساساتو سره سمون لري اوبس.

# دلندن دناستې موخې !

لطیف 'عزم '

دلنــــــدن ورســــتی دری اړخیزه ناسته چې دکابــل رژیــم پــه ولسمشــــر ســــربیره د پاکستان او برتانیی ړومبیو وزیرانــو هــم پکــې برخــه درلــود ،برتـانوي هیـوادیې پـه داسـې ډول میزبـاني ترسـره کـړه چــې ګــواکې نومــوړی هیــواد پــه هــیڅ ډول دافغانستان اوپاکستان ولسونه په کوم اور او کړاو کې راګیر اوسوځول کیږي ، برتانیه پکې هیڅ دخالت نلري ، بلکې دانور خلک او وجوهات دي چې سیمه یې دارو اوباروتو په بټی اړولي ده ؟

که څه هم له ورایه دنوموړي ناستي موخي داسلام اباد او کابل ترمنځ دښو اړیکو په پراختیااولارو چارو بحث ددواړو خواوله طالبانو سره دممکنه خبرو اوله ۲۰۱۴ کال ورسته دخارجي قواوو هغه اثرات ارزول چې ممکن په پاکستان او افغانستان پریوزي .

دبرتانیي وروستۍ ناسته لدې امله مغرضانه او په باطل نیت جوړه شوې وه او الله تعالی بې نتیجې هم پای ته ورسوله چې له یوه لوري دبرتانیي په زرګونه عسکر په افغانستان کې میشت اودیرغل په هوډ هلته لاس په ماشه دي اوله بل لوري روغه او جوړه هم امریکا او برتانیا دبدماشی او زورپه منطق په دغو ولسونو تحمیلول غواړي.

که برتانیا پـه رښتیا هم پـه افغانسـتان اوپاکسـتان کـې دسوځونکي اوور دلمبو خاموشه کول غواړي ، نو لنډه اونیږدي لاریې داده چې خارجي قـواوي پرتـه لـه هرډول قیـد اوشرطه لـه افغانسـتان څخه ووځي او پرقبایلي ولس دډرون ناترسه او بشریت ختمونکي بریدونه ودروي.

دراپورونو له مخي دلندن په وروستی ناسته کې دبرتانیي ته مهمه غوښتنه داوه چې که چیري په افغانستان اوپاکستان کې له طالبانو سره دسولي اوجوړجاړي هڅي

توندي اوګامزني شي اوخارجي قواوي ووځي ، په دې وخت اومقطع کې به دبرتانيې نقش او دګټو دخونديتوب تضمين په څه کې وي .

دغه راز برتانيه چې په عين حال کې دامريکادیونيابتي رول لوبولودنده هم ترغاړې لري ، ويل کيږي چې دکابل رژيم او پاکستان ته يې په ډاګه ويلي چې امريکا او برتانيا له ۲۰۱۴ کال ورسته هم په دغو دواړو هيوادونو کې دمهم اوبارز نقش لوبولو په فکرکې دي په ځانګړې ډول امريکاچې په ښکاره توګه په افغانستان کې دامنيتي تړون اوقضايي مصؤنيت ترموافقتنامې لاندې غواړي هلته ۹ ستري پوځي اډې جوړې کړي.

برتانيه که څه هم په ظاهره په افغانستان کې له ۲۰۱۴ کال وروسته دپوځي اډو دلرلو خبره نه پورته کوي خو دامريکالپاره توندي هلې ځلې کوي ترڅو يې په دغه سيمه کې حضور دايمي او بيادامريکاترچترلاندې برتانيه ځانته دايمي ځالي ابادي او ترګوتو کړي .

په دې ورستيو کې چې دپاکستان د( تحريک طالبان ) اوحکومت ترمنځ دخبرو او مذاکراتو ميدان تودشوی وو او امريکا دحکيم الله مسعود په شهيدلوسره عملا دغه پروسه له تشنج او خړ پړ تيا سره مخ کړه ، برتانيا چې تازه دپاکستان له ړومبي وزير سره له طالبانو دمذاکراتو په رونق خبري اتري کړي وي اومثبتي يې ګڼلي وي ، خو چې کله امريکا حکيم الله مسعود په شهادت ورساوه ، برتانيا دامريکا له نبض سره سم خپل سياست عيار اوله وروستی ډرون بريد څخه يې خپل کلک حمايت اعلان کړ.

دبرتانيې ړومبي وزير ( کامرون ) چې کله ۴کال وړاندې دبرتانيې واګې ترلاسه کړ دنوموړي هيواد پارلمان ته يې دخپلې پاليسی په اعلانولوسره وويل چې هغه دبرتانوي ولس له ارادي خبر دی چې دافغانستان جګړه نوراوږدول نه غواړي اونه هم لدې زيات دبرتانوي پوځيانو مرګ ژوبله تحمل کولای شي

دکامرون په خبره اوس برتانيا په افغانستان کې خپل سياست داسې عيارکړی چې په مستقيم ډول يعني دوسلي او لښکرو په زورنه بلکې دسياست اوديپلوماسي په زوربه هلته خپلې ګټې له هرډول خطر اوګواښ نه مصؤني ساتي اوددې کوشش به هم کوي چې ديوه دريم ګړي په توګه نقش ولوبوي .

دکتونکو په اند اوس دتانيي په شمول غربيان ټول دې نتيجې ته رسيدلي چې په پوځي ډګرکې دکاميابي هيڅ کوم چانس نلري؛ برتانيادې لپاره چې خپله کثيفه او قاتله خيره له امريکايانو يوځه بې ګناه اوکمه وښيي او په خپلو جنايتونو پرده واچوي او هم خپل ولس ته دافغانستان له جګړې سترې ثابت کړي نو دسولي او دريمګړي په رول کې ، هڅه کوي ترڅو استعماري موخو ته ځان ورسوي.

خو برتانيا بايدپوه وي چې دافغانانو او قبايلي ولس کاني اوبوټي هم ددوی مکار اوغليمانه سياست پيژني اوپه دې يې هم سر خلاصيږي چې برتانيي دتاريخ په اوږدو کې ددوګاونډيو اومسلمانوولسو ترمنځ هيڅکله دخير اومصلحت په بنا نه داچې منصفانه منځګړيتوب ندی کړی ، بلکې نوريې هم سره اخته کړي او تل پاتې بدبختی اوناورينونه يې ورته زيږولي اوراوړي دي.

## څو غوره ويناوي چې د انسان ژوند ښايسته کولی شي!

حضرت ابوبکر صديق رض فرمايي : تر ايمان وروسته ستره پيرزوينه نيک خويه ښځه ده .

حضرت سليمان ع د خوږې وينا په هکله وايي : خوږه وينا د قهر او غضب د سړولو او له منځه وړلو بريمنه لار ده.

مولانا جلال الدين رومي د انسان په اړه وايي : د انسان لوړول ګران خو را غورځول يې اسان دي

علامه اقبال هم انسانيت محترم بولي او په احترام کې يې د يرې ګټې نغښتې ګڼي دی وايي : د انساني ژوند پايښت د انسانانو په درناوي کې دی .

حضرت عيسی ع بيا فرمايي : بې عمله عالم د هغه ړانده په څير دی چې څراغ يې په لاس کې وي ، له ړنا څخه يې نور خلک ګټه اخلي او دی پخپله په تياره کې پاته وي .

حضرت علي رض وايي : يتيم هغه دی چې علم نه لري او غريب هغه دی چې عقل نه لري .

ابن جوزي رح وايي : هغه علم چې په زړه کې خوا خوږي ، ترحم او صله رحمي پيدا نه کړي د هغه زده کړه بې ګټې ده.




مفتي ابومحمد '' حقاني ''

### جاسوسي او د جاسوس شرعي حکم :

جاسوسي په خپل ذات کې یو اخلاقي جرم ،کریه او ناسم کار دی ،ځکه جاسوس یا استخباراتي کارکن هغه څوک وي، چې د یوه چا هغه اسرار یا رازونه چې هغه یې نه غواړې چې ښکاره شي ،ښکاره کوي او عام خلک یا کومه مغرضه ځانګړې اداره ترې خبروي ،خو کله دا سې هم کیږي چې ورته د یوه مسلمان مشر اړتیا هم پیدا شي چې صورت کې مشروعیت پیدا کړي.

دلته به یې مونږ شرعي خوا وسپړو او دا به روښانه کړو چې جاسوس څوک دی ،جاسوسي شریعت کې کوم حیثیت لري او د جاسوس سزا څه شئ ده ؟

### تجسس :

د تجسس د لغوي معني په باب د (المصباح المنیر )مصنف دا سې لیکي چې :التّجَسُّسُ لُغَةً: تَتَبُّعُ الأَخْبَارِ ، يُقَالُ: جَسَّ الأَخْبَارَ وَتَجَسَّسَهَا : إِذَا تَتَبَّعَهَا ، وَمِنْهُ الْجَاسُوسُ ، لأَنَّهُ يَتَتَبَّعُ الأَخْبَارَ وَيَفْحَصُ عَنْ بَوَاطِنِ الأُمُورِ ، ثُمَّ اُسْتُعِيرَ لِنَظَرِ الْعَيْنِ (١) . وَلَا يَخْرُجُ الْمَعْنَى الاصْطِلَاحِيُّ عَنِ الْمَعْنِيِّ اللُّغَوِيِّ.

یعنې جاسوسي د پیټښو او د خلکو پټو خبرو پسې تپ وتلاش ته ویل کیږي ،جاسوس هم د تجسس نه ماخوذ دی ،ځکه دا هم د خلکو پټو خبرو او رازو نو پسې کوښښ کوي ،ددې مفهوم نه پس د هغو مفاهیمو او مشاهداتو لپاره استعاره شو ،چې په سترګو کتل کیږي ،چې سربیره پردې اصطلاحي معنی یې له لغوي معنی څخه خارج نده ،بلکې تقارب او ورته والی سره لري .

هغه الفاظ چې د تجسس مفهوم افاده کوي دادي:

أ-التّحَسُّسُ:

۲ - التّحَسُّسُ هُوَ: طَلَبُ الْخَبَرِ ، يُقَالُ: رَجُلٌ حَسّاسٌ لِلأَخْبَارِ أَيْ: كَثِيرُ الْعِلْمِ بِهَا ، وَأَصْلُ الإِحْسَاسِ: الإِبْصَارُ ، وَمِنْهُ قَوْلُه تَعَالى: { هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِنْ أَحَدٍ } (سورة مريم / ۹۸ ) أَيْ: هَلْ تَرَى، ثُمّ اُسْتُعْمِلَ فِي الْوِجْدَانِ وَالْعِلْمِ بِأَيِّ حَاسَّةٍ كَانَتْ،

يعنې تحسس هم لکه د تجسس معنی ورکوي ،ځکه تحسس د خبر طلب ته وايې او همدا مفهوم په تجسس کې شته ،یا لکه چې ویل کیږي دا سړی په معلوماتو راټولو کې ډیر حساس دی یعنې پدې باب کې یې معلومات ډیردي ،چې همدا په قرآن کریم کې هم مستعمل دی.

وَقَدْ قُرِئَ قَوْله تَعَالى: { وَلَا تَجَسَّسُوا } (سورة الحجرات / ۱۲.) بِالْحَاءِ "وَلَا تَحَسَّسُوا " قَالَ الزّمَخْشَرِيُّ: وَالْمَعْنَيَانِ مُتَقَارِبَانِ ، وَقِيلَ: إنّ التّجَسُّسَ غَالِبًا يُطلَقُ عَلَى الشّرِّ ، وَأَمّا التّحَسُّسُ فَيَكُونُ غَالِبًا فِي الْخَيْرِ (المصباح المنير ، و تفسير الزمخشري ۳ / ۵۰۱۸.).

په قرآن کریم کې د((ولا تجسسوا )کلمه راغلې او دجیم پر ځای یې (حاء)هم یو قرائت دی ،(ولاتحسسوا )دزمحشري په آند دواړه یوه معنی ورکوي او بل نظر دادی چې (تجسس)غالباً په شراو بد ځای کې کارول کیږي او(تحسس)غالباً په خیر او ښه ځای کې استعمالیږي.

ب - التّرَصُّدُ:

۳ - التّرَصُّدُ: الْقُعُودُ عَلَى الطّرِيقِ ، وَمِنْهُ الرّصَدِيُّ: الّذِي يَقْعُدُ عَلَى الطّرِيقِ يَنْظُرُ النّاسَ لِيَأْخُذَ شَيْئًا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ظُلْمًا وَعُدْوَانًا (المصباح المنير.) . فَيَجْتَمِعُ التّجَسُّسُ وَالتّرَصُّدُ فِي أَنّ كُلا مِنْهُمَا تَتَبُّعُ أَخْبَارِ النّاسِ ، غَيْرَ أَنّ التّجَسُّسَ يَكُونُ بِالتّتَبُّعِ وَالسّعْيِ لِتَحْصِيلِ الأَخْبَارِ وَلَوْ بِالسّمَاعِ أَوِ الانْتِقَالِ ، أَمّا التّرَصُّدُ فَهُوَ الْقُعُودُ وَالانْتِظَارُ وَالتّرَقُّبُ.

په (المصباح المنیر.)کې همداسې د تجسس مترادفه کلمه (ترصد )په گوته شوي ، چې دا په لاره کې ناستې ته وايې ،(رصدي ) هغه چاته وايې چې په لاره ددې لپاره ناست وي ،چې خلک

وګوري او څه پيسې ترې په ناروا سره طريقه واخلي ،تجسس او ترصد ددواړو مابه الاشتراک دادی چې دواړو کې دخلکو دحالاتو دمعلولو مفهوم پروت دی، په دومره تفاوت چې تجسس په منډه تړه يا سعيه دچا حالات معلومول دي او ترصد کې په لاره ورته انتظار او څار کول دي.

ج-التّنَصُّتُ:

۴ - التّنَصُّتُ هُوَ: التّسَمُّعُ. يُقَالُ: أَنْصَتَ إِنْصَاتًا أَي: اسْتَمَعَ ، وَنَصَتَ لَهُ أَيْ: سَكَتَ مُسْتَمِعًا ، فَهُوَ أَعَمُّ مِنَ التّجَسُّسِ ؛ لأَنّ التّنَصُّتَ يَكُونُ سِرًّا وَعَلانِيَةً (۴ ).

همداسې په (المصباح المنير. )کې دتجسس لپاره بله مترادفه د(تنصت )کلمه راغلې ،چې چاته غوږنيول يې معنی ده ،البته داکلمه دتجسس نه عامه ده ځکه (تنصت)په پټه او ښکاره دواړوته شامليدای شي.

دتجسس يا جاسوسی دحکم په هکله ( الموسوعة الفقهية ) کې دعلماو ونظريات داسې ليکل شوي چې دا په درې ډوله ده: يو ډول جاسوسي حرامه ،بله واجب او بله يې مباح ده ،چې تفصيل يې پدې ډول سره دی:

حُكْمُ التّجَسُّسِ التّكْلِيفِيّ:

۵ - التّجَسُّسُ تَعْتَرِيهِ أَحْكَامٌ ثَلاثَةٌ: الْحُرْمَةُ وَالْوُجُوبُ وَالإِبَاحَةُ.

فَالتّجَسُّسُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ فِي الأَصْلِ حَرَامٌ مَنْهِيٌّ عَنْهُ ، لِقَوْلِهِ تَعَالَى: { وَلا تَجَسّسُوا } لأَنّ فِيهِ تَتَبُّعَ عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ وَمَعَايِبِهِمْ وَالاسْتِكْشَافَ عَمّا سَتَرُوهُ. وَقَدْ قَالَ صَلّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ: "يَا مَعْشَرَ مَنْ آمَنَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يَدْخُلِ الإِيمَانُ إِلَى قَلْبِهِ لا تَتَبّعُوا عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ ، فَإِنّ مَنْ تَتَبّعَ عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ تَتَبّعَ اللّهُ عَوْرَتَهُ حَتّى يَفْضَحَهُ وَلَوْ فِي جَوْفِ بَيْتِهِ "(تفسير الكشاف ۳ / ۵۲۸ ، وحديث: " يا معشر من آمن بلسانه... "أخرجه الترمذي (۴ / ۳۷۸ ـ ط الحلبي ) وقال: حسن غريب.).

قَالَ ابْنُ وَهْبٍ: وَالسّتْرُ وَاجِبٌ إِلا عَنِ الإِمَامِ وَالْوَالِي وَأَحَدِ الشّهُودِ الأَرْبَعَةِ فِي الزّنَى.

وَقَدْ يَكُونُ التَّجَسُّسُ وَاجِبًا ، فَقَدْ نُقِلَ عَنِ ابْنِ الْمَاجِشُونِ أَنَّهُ قَالَ: اللُّصُوصُ وَقُطَّاعُ الطَّرِيقِ أَرَى أَنْ يُطْلَبُوا فِي مَظَانِّهِمْ وَيُعَانَ عَلَيْهِمْ حَتَّى يُقْتَلُوا أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الأَرْضِ بِالْهَرَبِ (تبصرة الحكام ۲ / ۱۷۱ ). وَطَلَبُهُمْ لا يَكُونُ إِلا بِالتَّجَسُّسِ عَلَيْهِمْ وَتَتَبُّعِ أَخْبَارِهِمْ.

وَيُبَاحُ فِي الْحَرْبِ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ وَغَيْرِهِمْ بَعْثُ الْجَوَاسِيسِ لِتُعْرَفَ أَخْبَارُ جَيْشِ الْكُفَّارِ مِنْ عَدَدٍ وَعَتَادٍ وَأَيْنَ يُقِيمُونَ وَمَا إِلَى ذَلِكَ.

وَكَذَلِكَ يُبَاحُ التَّجَسُّسُ إِذَا رُفِعَ إِلَى الْحَاكِمِ أَنَّ فِي بَيْتِ فُلانٍ خَمْرًا ، فَإِنْ شَهِدَ عَلَى ذَلِكَ شُهُودٌ كَشَفَ عَنْ حَالِ صَاحِبِ الْبَيْتِ ، فَإِنْ كَانَ مَشْهُورًا بِمَا شُهِدَ عَلَيْهِ أُخِذَ ، وَإِنْ كَانَ مَسْتُورًا فَلا يُكْشَفُ عَنْهُ. وَقَدْ سُئِلَ الإِمَامُ مَالِكٌ عَنِ الشُّرْطِيِّ يَأْتِيهِ رَجُلٌ يَدْعُوهُ إِلَى نَاسٍ فِي بَيْتٍ اجْتَمَعُوا فِيهِ عَلَى شَرَابٍ ، فَقَالَ: إِنْ كَانَ فِي بَيْتٍ لا يُعْلَمُ ذَلِكَ مِنْهُ فَلا يَتَتَبَّعُهُ ، وَإِنْ كَانَ مَعْلُومًا بِذَلِكَ يَتَتَبَّعُهُ.

وَلِلْمُحْتَسِبِ أَنْ يَكْشِفَ عَلَى مُرْتَكِبِي الْمَعَاصِي ؛ لأَنَّ قَاعِدَةَ وِلايَةِ الْحِسْبَةِ: الأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ (المصدر السابق.).

**لنډ مفهوم او ژباړه: تجسس درې ډوله احکام لري: حرمت، وجوب او اباحت.**

اصلاً د مسلمانانو جاسوسي کول او د دوئ رازونه چاته ښکاره کول حرام او منهي عنه دس، ځکه الله ﷻ فرمايي چې ژباړه: (تاسو جاسوسي مه کوئ) دا ځکه چې په جاسوسۍ کې د مسلمانانو د پټو رازونو او د دوئ د عيوبو پلټنه صورت نيسي او بل پکې د هغه څه د بربنډيدو هڅه وي، چې هغه يې پټول غواړي، رسول الله ﷺ هم فرمايي چې يا د هغه چا ټولنې چې په ژبه يې ايمان راوړی خو زړه ته يې ايمان ندی ننوتی، تاسو د مسلمانانو د عوراتو او پټو رازونو د معلومولو پلټنه مه کوئ، ځکه يقيناً چې څوک د مسلمانانو د پټو اسرارو پلټنه کوي، الله ﷻ به د ده د پټو رازونو پلټنه وکړي، تردې چې رسوا به يې کړي، که څه هم دا کس د کوټې په منځ کې (پټ) وي، ابن وهب وايي چې له امام (پاچا)، والي او په زنا کې له اربعه شهودو نه په غير پرده اچول واجب دي، يعني د دوئ نه به خبره پټول سم کار نه وي. کله نا کله تجسس واجب هم وي، د دوهمې هجري پيړۍ له اکابرو څخه يو هم (ابن الماجشون) دی چې د ده څخه رانقل

شوي دي ،چې ده ويلي دي چې :دغلو او لارو وهونكيو په هكله زما نظر دادى:چې دوئ پسې پلټنه او تجسس وشي او ددوئ دشتون مشكوك ځايونه پسې ولټول شي، تردې چې دوئ يا ووژل شي او ياهم تجريد يا جلا وطن شي .كله چې دمسلمانانوله بل چاسره جنگ وي ،نو مباح داده ،چې مسلمانان دكفارودلښكرو دحالاتو دمعلومولو لپاره جواسيس وليږي ،تر څو ځانته معلومه كړي، چې ددوئ شمير څواک څومره او قرارگاه يې چيرته ده ...........همداسې دوخت حاكم ته دتجسس اباحت هغه صورت كې هم شته، چې خبر شي: چې فلاني كوركې شراب دي ،كه شاهدي پرې وويل شوه، نو رسوابه يې كړي او كه چيرته دامشهود عليه كس پدې شهرت لاره ،نو بايدونيول شي ،خو كه چيرته مستور واو شهرت ته پكې نه و رسيدلى نو پرده به پرې واچول شي ،له امام مالک رح نه چا وپوښتل چې كه چيرته پوليسوته څو راپور وركړي:چې دې كوركې خلک په شرابو څښلو راټول شوي دي، نوڅه به كوي؟ده ورته ځواب كې وويل چې :كه داخلک داسې كور كې راټول وو ،چې چاته يې درک نه لگيده ،نو پوليس به يې تپ وتلاش نه كوي ،اوكه چيرته پكې شهرت ته رسيدلي وو ،نو بيا به يې تتبع كوي ،خو محتسب ته روا ده ،چې دمعاصيو دمرتكب حال كشف كړي ،ځكه دمحتسب له اصولونه ده چې امر بالمعروف او نهى عن المنكربه كوي چې ددې څيړنه به دبحث په پاى كې راشي......

.....واستثناء من ذلک فقد يكون التجسس مشروعًا في أحوال معينة كالتجسس على المجرمين ، فقد لا يعرفون إلا بطريق التجسس ، وقد أجاز الفقهاء التجسس على اللصوص وقطاع الطريق ، وطلبهم بطريق التجسس عليهم وتتبع أخبارهم (١) ، وكذلک يجوز التجسس في حال الحرب بين المسلمين وغيرهم لمعرفة أخبار جيش الكفار وعددهم وعتادهم ومحل إقامتهم وما إلى ذلک .

أما الجاسوس الذي يتجسس على المسلمين فقد ذهب الحنفية إلى أن يوجع عقوبة ويطال حبسه حتى يحدث توبة (٢)

، وذهب المالكية إلى أنه يقتل ولا يستتاب ولا دية لورثته كالمحارب لإضراره بالمسلمين وسعيه بالفساد في الأرض ، وقيل: يجلد نكالًا ويطال حبسه وينفى من الموضع الذي كان فيه ، وقيل: يقتل إلا أن يتوب ، وقيل: يقتل إلا أن

يعذر بجهل ، وقيل : يقتل إن كان معتادًا لذلک (٣) . وذهب الشافعية (۴) إلى أن الجاسوس المسلم يعزر ولا يجوز قتله ، وإن كان ذا هيئة - أي سلف كريم في خدمة الإسلام - عفي عنه لحديث حاطب بن أبي بلتعة رضي الله عنه (۵) ، وذهب الحنابلة إلى أن الجاسوس يقتل لضرره على المسلمين (٦) .

---

(١) انظر : تبصرة الحكام لابن فرحون ٢ / ١٧١ .
(٢) انظر : الخراج لأبي يوسف ٢٠۵ .
(٣) انظر : تبصرة الحكام لابن فرحون ٢ / ١٧٧ ، وتفسير القرطبي ١٨ / ۵٢ .
(۴) انظر : حاشية القليوبي ۴ / ٢٢٢ .
(۵) حديث حاطب بن أبي بلتعة أخرجه البخاري ٦ / ١۴٣ ، وأخرجه مسلم ۴ / ١٩۴١ .
(٦) انظر : شرح منتهى الإرادات ٢ / ١٣٨
(وسائل الارهاب اليكترونى حكمها فى الاسلام)

---

## د جاسوس حکم:

د حربي جاسوس وژنه د ټولو مذاهبو اتفاقي مسئله ده او پدې څوک مخالفت نه کوي، البته د اهل ذمه او مستأمن جاسوس په هکله د حنفي مذهب د دويم امام قاضي ابو يوسف رح ،بعضي مالکيانو رح او حنابلو رح مسلک دا دی ،چې وژل يې روا دي، خو د حنفي مذهب د دريم امام محمد شيباني رح له نظره بايد ونه وژل شي ،شوافع رح هم په اصح قول کې وايي چې:په د اهل ذمه وو په جاسوسۍ عهد نه ماتيږي ،خو د مسلمان جاسوس په هکله دا حنافو د مذهب نو مو ړي امامان (ابو يوسف رح او امام محمد رح)وايي چې دوئ ته دې تعزير او عقوبت ورکړل شي او بايد ونه وژل شي ،چې همدا قول د بعضو مالکيانو ،شوافعو او حنابلو هم دی ، په ( الخراج لابي يوسف )کتاب کې دجاسوسانو په باب د عباسي خليفه (هارون الرشيد )د پوښتنې په ځواب کې د امام ابو يوسف رح هغه تشريح چې د جواسيسو احکام ترې معلوميږي غوره تحقيق دی ، د دوې دلايل او د نظرياتو تفصيل به په لاندې عبارت کې په ډاګه څرګند شي:

### التَّجَسُّسُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ فِي الْحَرْبِ:

٢ - الْجَاسُوسُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ إمّا أنْ يَكُونَ مُسْلِمًا أوْ ذِمّيًّا أوْ مِنْ أهْلِ الْحَرْبِ ، وَقَدْ أجَابَ أبُو يُوسُفَ عَنْ سُؤَالِ هَارُونَ الرّشِيد فِيمَا يَتَعَلّقُ بِالْحُكْمِ فِيهِمْ ، فَقَالَ: وَسَألْتَ يَا أمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ عَنِ الْجَوَاسِيسِ يُوجَدُونَ وَهُمْ مِنْ أهْلِ الذّمّةِ أوْ أهْلِ الحَرْبِ أوْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ، فَإنْ كَانُوا مِنْ أهْلِ الحَرْبِ أوْ مِنْ أهْلِ الذّمّةِ مِمّنْ يُؤَدّي الْجِزْيَةَ مِنَ الْيَهُودِ وَالنّصَارَى وَالْمَجُوسِ فَاضْرِبْ أعْنَاقَهُمْ ، وَإنْ كَانُوا مِنْ أهْلِ الإسْلامِ مَعْرُوفِينَ فَأوْجِعْهُمْ عُقُوبَةً ، وَأطِلْ حَبْسَهُمْ حَتّى يُحْدِثُوا تَوْبَةً (الخراج لأبي يوسف ٢٠٥-٢٠٦ . )

وَقَالَ الإمَامُ مُحَمّدُ بْنُ الْحَسَنِ: وَإذَا وَجَدَ الْمُسْلِمُونَ رَجُلا - مِمّنْ يَدّعِي الإسْلامَ - عَيْنًا لِلْمُشْرِكِينَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ يَكْتُبُ إلَيْهِمْ بِعَوْرَاتِهِمْ فَأقَرّ بِذَلِكَ طَوْعًا فَإنّهُ لا يُقْتَلُ ، وَلَكِنّ الإمَامَ يُوجِعُهُ عُقُوبَةً. ثُمّ قَالَ: إنّ مِثْلَهُ لا يَكُونُ مُسْلِمًا حَقِيقَةً ، وَلَكِنْ لا يُقْتَلُ لأنّهُ لَمْ يَتْرُكْ مَا بِهِ حُكِمَ بِإسْلامِهِ فَلا يَخْرُجُ عَنِ الإسْلامِ فِي الظّاهِرِ مَا لَمْ يَتْرُكْ مَا بِهِ دَخَلَ فِي الإسْلامِ ، وَلأنّهُ إنّمَا حَمَلَهُ عَلَى مَا فَعَلَ الطّمَعُ ، لا خُبْثُ الاعْتِقَادِ ، وَهَذَا أحْسَنُ الْوَجْهَيْنِ ، وَبِهِ أمِرْنَا . قَالَ اللّهُ تَعَالَى: { الّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتّبِعُونَ أحْسَنَهُ} (سورة الزمر / ١٨ . ) وَاسْتَدَلّ عَلَيْهِ بِحَدِيث "حَاطِبِ بْنِ أبِي بَلْتَعَةَ ، فَإنّهُ كَتَبَ إلَى قُرَيْشٍ: أنّ رَسُولَ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ يَغْزُوكُمْ فَخُذُوا حِذْرَكُمْ ، فَأرَادَ عُمَرُ رَضِيَ اللّهُ عَنْهُ قَتْلَهُ ، فَقَالَ الرّسُولُ لِعُمَرَ: مَهْلا يَا عُمَرُ ، فَلَعَلّ اللّهَ قَد اطّلَعَ عَلَى أهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ " (أخرجه البخاري ( ٢ / ١٤٣-الفتح ط السلفية ) ، ومسلم ( ٤ / ١٩٤١-ط الحلبي ) . ) فَلَوْ كَانَ بِهَذَا كَافِرًا مُسْتَوْجِبًا لِلْقَتْلِ مَا تَرَكَهُ الرّسُولُ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ بَدْرِيًّا كَانَ أوْ غَيْرَ بَدْرِيٍّ ، وَكَذَلِكَ لَوْ لَزِمَهُ الْقَتْلُ بِهَذَا حَدًّا مَا تَرَكَهُ الرّسُولُ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلّمَ وَفِيهِ نَزَلَ قَوْلُه تَعَالَى: { يَا أيُّهَا الّذِينَ آمَنُوا لا تَتّخِذُوا عَدُوّي وَعَدُوّكُمْ أوْلِيَاءَ} (سورة الممتحنة / ١ . ) فَقَدْ سَمّاهُ مُؤْمِنًا ، وَعَلَيْهِ دَلّتْ قِصّةُ أبِي لُبَابَةَ حِينَ اسْتَشَارَهُ بَنُو قُرَيْظَةَ ، فَأمَرّ أصْبُعَهُ عَلَى حَلْقِهِ يُخْبِرُهُمْ أنّهُمْ لَوْ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللّهُ

عَلَيْه وَسَلَّمَ قَتَلَهُمْ ، وَفيه نَزَلَ قَوْله تَعَالى: {يَا أَيُّهَا الَّذينَ آمَنُوا لا تَخُونُوا اللّهَ وَالرَّسُولَ} (سورة الأنفال / ٢٧). وَكَذَلكَ لَوْ فَعَلَ هَذَا ذمّيٌّ فَإنّهُ يُوجعُ عُقُوبَةً وَيُسْتَوْدَعُ السّجْنَ ، وَلا يَكُونُ هَذَا نَقْضًا منْهُ للعَهْد ، لأَنّهُ لَوْ فَعَلَهُ مُسْلمٌ لَمْ يَكُنْ به نَاقضًا أَمَانَهُ ، فَإذَا فَعَلَهُ ذمّيٌّ لا يَكُونُ نَاقضًا أَمَانَهُ أَيْضًا . أَلا تَرَى أَنّهُ لَوْ قَطعَ الطّريقَ فَقَتَلَ وَأَخَذَ الْمَالَ لَمْ يَكُنْ به نَاقضًا للعَهْد ، وَإنْ كَانَ قَطعُ الطّريق مُحَارَبَةً للّه وَرَسُوله بالنّصّ فَهَذَا أَوْلى. وَكَذَلكَ لَوْ فَعَلَهُ مُسْتَأْمَنٌ فَإنّهُ لا يَصيرُ نَاقضًا لأَمَانه بمَنْزلَة مَا لَوْ قَطعَ الطّريقَ ، إلا أَنّهُ يُوجعُ عُقُوبَةً في جَميع ذَلكَ لأَنّهُ ارْتَكَبَ مَا لا يَحلُّ لَهُ وَقَصَدَ بفعْله إلْحَاقَ الضّرَر بالْمُسْلمينَ. ..........وَإنْ جَحَدَ الْمُسْتَأْمَنُ أَنْ يَكُونَ فَعَلَ ذَلكَ ، وَقَالَ: الْكتَابُ الّذي وَجَدُوهُ مَعَهُ إنّمَا وَجَدَهُ في الطّريق وَأَخَذَهُ ، فَلَيْسَ يَنْبَغي للمُسْلمينَ أَنْ يَقْتُلُوهُ منْ غَيْر حُجّة ، لأَنّهُ آمنٌ باعْتبَار الظّاهر ، فَمَا لَمْ يَثْبُتْ عَلَيْه مَا يَنْفي أَمَانَهُ كَانَ حَرَامَ القَتْل. فَإنْ هَدّدُوهُ بضَرْب أَوْ قَيْد أَوْ حَبْس حَتّى أَقَرّ بأَنّهُ عَيْنٌ فَإقْرَارُهُ هَذَا لَيْسَ بشَيْء ، لأَنّهُ مُكْرَهٌ ، وَإقْرَارُ الْمُكْرَه بَاطلٌ سَوَاءٌ أَكَانَ الإكْرَاهُ بالْحَبْس أَمْ بالْقَتْل ، وَلا يَظْهَرُ كَوْنُهُ عَيْنًا إلا بأَنْ يُقرّ به عَنْ طَوْع ، أَوْ شَهدَ عَلَيْه شَاهدَان بذَلكَ ، وَيُقْبَلُ عَلَيْه بذَلكَ شَهَادَةُ أَهْل الذّمّة وَأَهْل الْحَرْب ، لأَنّهُ حَرْبيٌّ فينَا وَإنْ كَانَ مُسْتَأْمَنًا ، وَشَهَادَةُ أَهْل الْحَرْب حُجّةٌ عَلَى الْحَرْبيّ.

.........وَإنْ وَجَدَ الإمَامُ مَعَ مُسْلمٍ أَوْ ذمّيٍّ أَوْ مُسْتَأْمَنٍ كتَابًا فيه خَطُّهُ وَهُوَ مَعْرُوفٌ ، إلَى مَلك أَهْل الْحَرْب يُخْبرُ فيه بعَوْرَات الْمُسْلمينَ فَإنّ الإمَامَ يَحْبسُهُ ، وَلا يَضْربُهُ بهَذَا الْقَدْر ؛ لأَنّ الْكتَابَ مُحْتَمَلٌ فَلَعَلّهُ مُفْتَعَلٌ ، وَالْخَطُّ يُشْبهُ الْخَطّ ، (١) فَلا يَكُونُ لَهُ أَنْ يَضْربَهُ بمثْل هَذَا الْمُحْتَمَل ، وَلَكنْ يَحْبسُهُ نَظَرًا للْمُسْلمينَ حَتّى يَتَبَيّنَ لَهُ أَمْرُهُ: فَإنْ لَمْ يَتَبَيّنْ خَلّى سَبيلَهُ ، وَرَدّ الْمُسْتَأْمَنَ إلَى دَار الْحَرْب ، وَلَمْ يَدَعْهُ ليُقيمَ بَعْدَ هَذَا في دَار الإسْلام يَوْمًا وَاحدًا ؛ لأَنّ الرّيبَةَ في أَمْره قَدْ تَمَكّنَتْ وَتَطْهيرُ دَار الإسْلام منْ مثْله منْ بَاب إمَاطَة الأَذَى فَهُوَ أَوْلَى (السير الكبير ٥ / ٢٠٤٠-٢٠٤٤ ط شركة الإعلانات). ..........

(١)هذا ما ذهب إليه الفقهاء والمتقدمون ، لأنه لم يكن لديهم وسائل تميز الخطوط . ومعرفة خواص كل خط فاحتاطوا . أما وقد كشف العلم في زماننا أن لخط كل شخص خاصية تميزه بها عن سائر الخطوط ، فإن الخط يمكن الآن الاعتماد عليه واعتباره قرينة ، يقضى بموجبها . وكذلک بصمة الإصبع ونحوها مما تثبت قطعية دلالته . )

**ژباړه اولنډ مطلب**:هغه څوک چې دمسلمانانو جاسوسي کوي، یا به مسلمان ،یاذمي او یابه حربي کافروي ،اوامام ابويوسف رح دهارون الرشيد پوښتنې ته داسې ځواب ورکړ: چې ددوئ حکم تـرې معلـومیږي ،یـا امیرالمؤمنینـه !تادداسـې جاسوسانوپوښـتنه وکـړه !چـې هغـه پـه ذمیانو ،مستامنينواومسلمانانوکې موندل کيږي،که چيرته دوئ له يهودو ،نصاراوواومجوسيانو څخه اهل ذمه یا مستامن وو ،نو څټونه یې په توره غوڅ کړه اوکه چیرته دوئ له اهل اسلامونه وو ،اومشهوروو پکې،نوعقوبت ورته ورکړه اوزندان یې دومره وغځوه چې توبه وباسي !

اوامام محمد بن الحسن شيباني رح وایې: چې که چیرته مسلمانانو یوڅوک وموند ،چې داسلام دعوه یې کوله او ددې تر څنګ یې مشرکانو ته دمسلمانانو جاسوسي هم کوله ،ددوئ رازونه به یې ورته په تحريري بڼه ليکل ،اوپه خپله خوښه یې پدې اعتراف هم وکړ،نو یقیناً چې دا سړی به نه وژل کیږي ،لکن دوخت پاچا یامشربه ورته عقوبت او تعزيزورکړي....بيا وايي چې داسې خلک حقیقتاً مسلمانان نشي کیدای ،خووژنه یې ځکه نشته ،چې ظاهراً پرې دمسلمان حکم جاري کيږي ،دده داتجسس اعتقادي نه ،بلکې ددنيوي تمې په خاطر رامنځته شوی ،اوداهغه ده ،چې الله ﷻهم پرې مونږ مکلف کړي يو ، لکه چې فرمايي ترجمه: داهغه خلک دي چې دوئ وینا اوري او دښې خبرې پیروي تري کوي )اوپدې باندې د(حاطب بن ابي بلتعه ﷺ )حديث هم ښه دليل دی ،چې ده قريشوته وليکل چې :په تحقيق رسول الله ﷺپر تاسو غزاکوي، نو وسلې مو راواخلئ،نو عمر ﷺدده دقتل اراده وکړه ،نو رسول الله ﷺحضرت عمر ﷺته وويل چې نرمي ورسره وکړه او فرصت ورکړه، ښايي الله ﷻته داهل بدر وپه باب پوره معلومات و ،بيا یې وفرمايل چې :ژباړه(چې څنګه مو خوښه وي عملونه کوئ ،په تحقيق سره ما تاسوته بخښنه کړي ده )نوکه چيرته پدې سره داکافر کیدای او مستو جب دوژلو وی ،نو نورسول الله ﷺبه نه وی پريښی ،داکه بدري وی، که غير بدري ،همدا رنګه که دده وژنه پدې سره حداً هم وي، نو رسول الله ﷺ به نوی پریښی ،پدې کې دالله ﷻداقول نازل شوی ، ژباړه: (ای هغو خلکو چې ايمان مو راوړی ،تاسو مه نيسئ زما دشمنان او ستاسو دشمنان دوستان )نو

دلته هم په مؤمن باندې مسمی شوی او همدا سې د مسلمان جاسوس په نه وژنه د حضرت ابو لبابه ﷺ کیسه هم پرې دلالت کوي ،چې دده ﷺ څخه بنو قریظه وو ، مشوره وغوښته، نو ده خپله ګوته په غاړه کش کړه، چې دوئ ته یې ددې خبر ورکاوه ، چې که چیرته دوئ د رسول الله ﷺ په حکم راکوز شي (له کلا څخه )نو قتل به یې کړي، نو پدې مورد کې دا را نازل شو چې:ژباړه (ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی تاسو دالله ﷻاو دهغه د رسول ﷺسره خیانت مه کوئ )

همدا سې که دا جاسوسي ذمي وکړه، نو هم به ورته عقوبت ورکول کیږي او زندان ته به اچول کیږي ،او پدې سره یې دعهد نقض نه راځي ،همدا سې که مستامن یې وکړي ،نو دا پرې هم دعهد ناقض نه ګرځي ،مګر عقوبت به ورته ورکول کیږي ،ځکه دوئ مسلمانانو ته ضرر رسولی ،که چیرته مستامن له جاسوسی انکارکاوه، مګرپه وهلو ،زندان او قید سره تر تهدیدورو سته یې تجسس باندې اقرار وکړ، دا اعتبار نلري ځکه دې وخت کې دا مکره دی ،خو که پخپله خوښه یې اعتراف وکړ، یا پرې دوه کسانو شاهدي وویله ،نو بیا یې جرم صحت لري.

که چیرته امام د مسلمان ،ذمي یا مستامن سره خط ومومند ،او داده دلاس خط باندې مشهور و ،چې پکې یې د مسلمانانو احوال دحربیانو پاچاته ورکاوه ،نو امام به دا سړی بندي کړي ،او وهل به نه ورکوي ،ځکه کیدای شي دا دبل چا خط وي ،خو زندان ته به یې واچوي تر څو یې ښه تبین وشي (البته دادمتقدمینو نظر دی اوس وخت کې خطونه او لیکونه دهر چا یو دبل نه تفکیک کیدای شي )که چیرته یې حالت څرګند نشو نو خوشي به یې کړي .

**٧ - مَذْهَبُ الْمَالكيّـة: أنّ الجَاسُوسَ الْمُسْـتَأمَنَ يُقْتَـلُ ، وَقَـالَ سَـحْنُونٌ فِـي الْمُسْلمِ يَكْتُبُ لأَهْلِ الْحَرْبِ بِأَخْبَارِ الْمُسْلِمِينَ: يُقْتَلُ وَلَا يُسْتَتَابُ وَلَا دِيَةَ لِوَرَثَته كَالْمُحَارِبِ. وَقِيلَ: يُجْلَدُ نَكَالا وَيُطَالُ حَبْسُهُ وَيُنْفَى مِنَ الْمَوْضِعِ الّذي كَانَ فيه ، وَقِيلَ: يُقْتَلُ إِلا أَنْ يَتُوبَ ، وَقِيلَ: إِلا أَنْ يُعْذَرَ بِجَهْلٍ. وَقِيلَ: يُقْتَلُ إِنْ كَانَ مُعْتَادًا لِذَلِكَ ، وَإِنْ كَانَتْ فَلْتَةً ضُرِبَ وَنُكِّلَ (تبصرة الحكام ٢ / ١٧٧ـ١٧٨ )**

ژباړه :دامام مالک رح دمذهب پریکړه داده چې :مستامن جاسوس به وژل کیږي او سحنون رح د مسلمان جاسوس په باب چې د مسلمانانو اهل حربو ته معلوماتي لیکونه ورلیږي وایي :چې ودې وژل شي او اجابت دتوبې دې هم نه کیږي او دیت یې هم نشته ،چاویلي چې په درو دې ووهل شي ،اوږمهاله زندان دې ورکړل شي او جلا وطن دې شي ،چا ویلي چې ودې

وژل شي مګر که توبه يې وايسته ،چا ويلي د جهالت په وجه له مرګه ژغورل کيږي ،چا ويلي چې که دا جاسوسي يې عادت وو وژل کيږي به .....................

وَقَدْ جَاءَ فِي الْقُرْطُبِيِّ فِي تَفْسِيرِ قَوْلِه تَعَالَى: { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ} (سورة الممتحنة/١.) مَا يَأْتِي: مَنْ كَثُرَ تَطَلُّعُهُ عَلَى عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ وَيُنَبِّهُ عَلَيْهِمْ وَيُعَرِّفُ عَدَدَهُمْ بِأَخْبَارِهِمْ لَمْ يَكُنْ كَافِرًا بِذَلِكَ، إِذَا كَانَ فِعْلُهُ لِغَرَضٍ دُنْيَوِيٍّ وَاعْتِقَادُهُ عَلَى ذَلِكَ سَلِيمٌ، كَمَا فَعَلَ حَاطِبٌ حِينَ قَصَدَ بِذَلِكَ اتِّخَاذَ الْيَدِ وَلَمْ يَنْوِ الرِّدَّةَ عَنِ الدِّينِ. وَإِذَا قُلْنَا: لا يَكُونُ بِذَلِكَ كَافِرًا فَهَلْ يُقْتَلُ بِذَلِكَ حَدًّا أَمْ لا ؟ اخْتَلَفَ النَّاسُ فِيهِ، فَقَالَ مَالِكٌ وَابْنُ الْقَاسِمِ وَأَشْهَبُ: يَجْتَهِدُ فِي ذَلِكَ الإِمَامُ. وَقَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ: إِذَا كَانَتْ عَادَتُهُ ذَلِكَ قُتِلَ لأَنَّهُ جَاسُوسٌ. وَقَدْ قَالَ مَالِكٌ: يُقْتَلُ الْجَاسُوسُ - وَهُوَ صَحِيحٌ - لإِضْرَارِهِ بِالْمُسْلِمِينَ وَسَعْيِهِ بِالْفَسَادِ فِي الأَرْضِ، وَلَعَلَّ ابْنَ الْمَاجِشُونِ إِنَّمَا اتَّخَذَ التَّكْرَارَ فِي هَذَا لأَنَّ حَاطِبًا أُخِذَ فِي أَوَّلِ فِعْلِهِ. فَإِنْ كَانَ الْجَاسُوسُ كَافِرًا، فَقَالَ الأَوْزَاعِيُّ: يَكُونُ نَقْضًا لِعَهْدِهِ، وَقَالَ أَصْبَغُ: الْجَاسُوسُ الْحَرْبِيُّ يُقْتَلُ، وَالْجَاسُوسُ الْمُسْلِمُ وَالذِّمِّيُّ يُعَاقَبَانِ إِلا إِنْ تَظَاهَرَا عَلَى الإِسْلامِ فَيُقْتَلانِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِعَيْنٍ لِلْمُشْرِكِينَ اسْمُهُ فُرَاتُ بْنُ حَيَّانَ فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُقْتَلَ، فَصَاحَ: يَا مَعْشَرَ الأَنْصَارِ أُقْتَلُ وَأَنَا أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَلَّى سَبِيلَهُ. ثُمَّ قَالَ: إِنَّ مِنْكُمْ مَنْ أَكِلُهُ إِلَى إِيمَانِهِ، مِنْهُمْ فُرَاتُ بْنُ حَيَّانَ " (تفسير القرطبي ١٨/ ٥٢، ٥٣، وحديث علي بن أبي طالب في فرات بن حيان. أخرجه أبو داود (٣/ ١١١ - ط عزت عبيد دعاس) والحاكم (٢/ ١١٥ - ط دائرة المعارف العثمانية) وصححه ووافقه الذهبي ")

لنډ مطلب او ژباړه: په تفسير قرطبي کې ددې آيت په تفسير راغلي چې (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ): يو څوک په مکرر ډول د مسلمانانو له حالاتو نه کفار و خبروي او دا کار يې اعتقادي نه وي ،بلکې د کوم دنيوي ګټې په خاطر وي ،نو دې سره کافر کيږي نه، لکه څنګه چې (حاطب بن ابي بلتعه ﵁) دا سې کار کړی و ،خو چې کافر پرې نشو

آیا حداًپرې وژل کیږي ؟پدې کې دعلماوو اختلاف دی:مالک ،ابن قاسم او اشهب وایې چې امام یا پاچا دې پکې اجتهاد وکړي او عبدالملک وایې:چې که دا یې عادت وو ،نو قتل دې شي ،ځکه دا جاسوس دی ،اوامام مالک هم ویلی چې جاسوس دې ووژل شي ،او داصحیح قول دی ، ځکه چې دې کې ده مسلمانانو ته ضرر ورساوه او په ځمکه کې یې دفساد کوشش وکړ،اوشاید چې ابن ماجشون رح پدې کې (دجاسوس وژلو کې )دتجسس تکرار دباور وړ ګرځولی وي ، داځکه چې (حاطب )په لومړي فعل ونیول شو ،که چیرته جاسوس کافرو ،نود اوزاعي رح په نظر داده دعهد ماتیدل شو ،او اصبغ رح (مالکي عالم دی )وایې چې حربي جاسوس به وژل کیږي ،مسلما ن او ذمي جاسوس ته به عقوبت یا تعزیز ورکول کیږي، مګر که دوئ په اسلام تظاهر کړی و ،نو بیا به وژل کیږي ،حضرت علی ﷺفرمایي چې( دفرات بن حیان ) په نوم دمشرکانو یو جاسوس رسول الله ﷺته راوستل شو ،نورسول الله ﷺیې دوژلو امر وکړ،نو ده چیغې کړې ،چې یا دانصاروو ته ولنې زه پداسې حال کې وژل کیږم چې دا وایم چې (أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللهُ وَأَنّ مُحَمّدًا رَسُولُ اللهِ )نو رسول الله ﷺیې دخوشي کیدو امر وکړ،نو بیا ده ﷺ وفرمایل چې ځینې په تاسو کې داسې دي چې خپل ایمان ته یې سپارم ،چې یو ددوئ څخه (فرات بن حیان ) دی.

٨ - وَمَذْهَبُ الشّافِعِيّ وَطَائِفَةٍ: أَنّ الجَاسُوسَ المُسْلِمَ يُعَزّرُ وَلا يَجُوزُ قَتْلُهُ. وَإِنْ كَانَ ذَا هَيْئَةٍ ( أَيْ مَاضٍ كَرِيمٍ فِي خِدْمَةِ الإِسْلامِ ) عُفِيَ عَنْهُ لِحَدِيثِ حَاطِبٍ ، وَعِنْدَهُمْ أَنّهُ لا يُنْتَقَضُ عَهْدُ الذّمّيّ بِالدّلالَةِ عَلَى عَوْرَاتِ المُسْلِمِينَ ، وَلَوْ شُرِطَ عَلَيْهِمْ فِي عَهْدِ الأَمَانِ ذَلِكَ فِي الأَصَحّ ، وَفِي غَيْرِهِ يُنْتَقَضُ بِالشّرْطِ (عمدة القاري ١٤ / ٢٥٢ ط المنيرية ، وشرح المنهج بحاشية البجيرمي ٤ / ٢٨١ ، والقليوبي ٤ / ٢٣٢ ، والشرقاوي على التحرير ٢ / ٤١٢ . ) .

لنډ ه ژباړه :دشوافعو مسلک دادی ،چې مسلمان جاسوس ته به تعزیز ورکول کیږي او وژل یې نا روادي ، د(حاطب )روایت ته په کتوکه چیرته دې جاسوس داسلام دخدمت رڼه ماضي درلوده، نو بیا دې معاف شي ،او دذمي عهد په جاسوسۍ نه ماتیږي ،

٩ - وَعِنْدَ الحَنَابِلَةِ: أَنّهُ يُنْتَقَضُ عَهْدُ أَهْلِ الذّمّةِ بِأَشْيَاءَ وَمِنْهَا : تَجَسّسَ أَوْ آوَى جَاسُوسًا ، لِمَا فِيهِ مِنَ الضّرَرِ عَلَى المُسْلِمِينَ (شرح منتهى الإرادات ٢ / ١٣٨ـ ١٣٩ )

ژباړه: حنابله وايې چې دذمي تعهد په څو شيانو ماتيږي چې تجسس او يا جاسوس ته پناه ورکول هم ددې عهد دنقض له عواملو څخه دي ،ځکه دې کې مسلمانانو ته ضرر دی.

په الموسوعة الفقهية کې وروسته ليکي چې :وَمِمَّا تَقَدَّمَ يَتَبَيَّنُ أَنَّ الْجَاسُوسَ الْحَرْبِيَّ مُبَاحُ الدَّمِ يُقْتَلُ عَلَى أَيِّ حَالٍ عِنْدَ الْجَمِيعِ ، أَمَّا الذِّمِّيُّ وَالْمُسْتَأْمَنُ فَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَبَعْضُ الْمَالِكِيَّةِ وَالْحَنَابِلَةِ: إِنَّهُ يُقْتَلُ.

وَلِلشَّافِعِيَّةِ أَقْوَالٌ أَصَحُّهَا أَنَّهُ لا يُنْتَقَضُ عَهْدُ الذِّمِّيِّ بِالدَّلالَةِ عَلَى عَوْرَاتِ الْمُسْلِمِينَ ، لأَِنَّهُ لا يُخِلُّ بِمَقْصُودِ الْعَقْدِ . وَأَمَّا الْجَاسُوسُ الْمُسْلِمُ فَإِنَّهُ يُعَزَّرُ وَلاَ يُقْتَلُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ وَبَعْضِ الْمَالِكِيَّةِ وَالْمَشْهُورُ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ ، وَعِنْدَ الْحَنَابِلَةِ أَنَّهُ يُقْتَلُ. (الخلاصةفی احکام اهل الذمة)

ژباړه او **خلص مطلب**: دحربي جاسوس وژنه دټولو مذاهبو اتفاقي ده او پدې څوک مخالفت نه کوي، البته داهل ذمه او مستأمن جاسوس په هکله دحنفي مذهب ددويم امام قاضي ابويوسف رح ،بعضي مالکيانو او حنابلو مسلک دادی چې وژل يې روا دي ،خو دحنفي مذهب ددريم امام محمد شيباني رح له نظره بايد ونه وژل شي ،شوافع رح هم په اصح قول کې وايې چې په جاسوسۍ داهل ذمه وو عهد نه ماتيږي ،خو دمسلمان جاسوس په هکله دا حنافو دمذهب نوموړي امامان (ابويوسف رح او امام محمد رح) وايې چې دوئ ته بايد تعزير او عقوبت ورکړ شي او بايد ونه وژل شي ،چې همدا قول دبعضو مالکيانو ،شوافعو او حنابلو وهم دی......

په فتاوی دارالعلوم حقانيه کې داسې ليکلي چې :که چيرته کوم شخص دکافر حکومت جاسوس شي، دمسلمانانو پټ رازونه هغوئ ته ورې ،يادکافر حکومت مرسته دمسلمانانو خلاف کوي ، که چيرته دا شخص ونيول شي وژل يې جايزدي که نه ؟ځواب: که چيرته دقتل څخه په غير نور تدبيرونه دده پوهولو لپاره کار نه ورکوي ،نودده په وژنه کې کوم حرج نشته ،داخو دمسلمان جاسوس حال دی ،که حربي وي، پدې کې بيا کلام نشته ،اګرچې دامام ابوحنيفه رح او ځيني نورو أيمه وو څخه دمسلمان جاسوس دنه قتلولو اقوال مروي دي ،لما قال علامة الامام القرطبي :. فَإِنْ كَانَ الْجَاسُوسُ كَافِرًا ، فَقَالَ الأَوْزَاعِيُّ: يَكُونُ نَقْضًا لِعَهْدِهِ ، وَقَالَ أَصْبَغُ: الْجَاسُوسُ الْحَرْبِيُّ يُقْتَلُ ، وَالْجَاسُوسُ الْمُسْلِمُ

وَالذِّمِّيُّ يُعَاقَبَانِ إلا إنْ تَظَاهَرَا عَلَى الإِسْلامِ فَيُقْتَلانِ(الجامع لاحكام القران)ج۱۸ص**۵۳**/سورة الممتحة.

وقال الحافظ العينى رح: الجاسوس يقتل وإنما نفى القتل عن حاطب لما علم النبي منه ولكن مذهب الشافعي وطائفة أن الجاسوس المسلم يعزر ولا يجوز قتله وإن كان ذا هيئة عفي عنه لهذا الحديث وعن أبي حنيفة والأوزاعي يوجع عقوبة ويطال حبسه وقال ابن وهب من المالكية يقتل إلا أن يتوب وعن بعضهم أنه يقتل إذا كانت عادته ذلك وبه قال ابن الماجشون وقال ابن القاسم يضرب عنقه لأنه لا تعرف توبته وبه قال سحنون ومن قال بقتله فقد خالف الحديث وأقوال المتقدمين وقال الأوزاعي فإن كان كافرا يكون ناقضا للعهد وقال أصبغ الجاسوس الحربي يقتل والمسلم والذمي يعاقبان إلا أن يظاهرا على الإسلام فيقتلان (عمدة القارى ج۱۴/ص**۲۵۲**/باب الجاسوس.

وقال العلامة الحصكفي رح: وفي المجتبى: الاصل أن كل شخص رأى مسلما يزني يحل له أن يقتله، وإنما يمتنع خوفا من أن لا يصدق أنه زنى (وعلى هذا) القياس (المكابر بالظلم وقطاع الطريق وصاحب المكس وجميع الظلمة بأدنى شئ له قيمة) وجميع الكبائر والاعونة والسعاة يباح قتل الكل ويثاب قاتلهم. انتهى.

وأفتى الناصحي بوجوب قتل كل مؤذ..........وقال العلامه ابن عابدين رح: ( قَوْلُهُ وَجَمِيعُ الْكَبَائِرِ ) أَيْ أَهْلُهَا .

وَالظَّاهِرُ أَنَّ الْمُرَادَ بِهَا الْمُتَعَدِّي ضَرَرُهَا إلَى الْغَيْرِ ، فَيَكُونُ قَوْلُهُ وَالْأَعْوِنَةُ وَالسُّعَاةُ عَطْفَ تَفْسِيرٍ أَوْ عَطْفَ خَاصٍّ عَلَى عَامٍّ ، فَيَشْمَلُ كُلَّ مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْفَسَادِ كَالسَّاحِرِ وَقَاطِعِ الطَّرِيقِ وَاللِّصِّ وَاللُّوطِيِّ وَالْخَنَّاقِ وَنَحْوِهِمْ مِمَّنْ عَمَّ ضَرَرُهُ وَلَا يَنْزَجِرُ بِغَيْرِ الْقَتْلِ ( قَوْلُهُ وَالْأَعْوِنَةُ ) كَأَنَّهُ جَمْعُ مُعِينٍ أَوْ عَوَانٍ بِمَعْنَاهُ ، وَالْمُرَادُ بِهِ السَّاعِي إلَى الْحُكَّامِ بِالْإِفْسَادِ ، فَعَطْفُ السُّعَاةِ عَلَيْهِ عَطْفُ تَفْسِيرٍ .

وَفِي رِسَالَةِ أَحْكَامِ السِّيَاسَةِ عَنْ جَمْعِ النَّسَفِيِّ: سُئِلَ شَيْخُ الْإِسْلَامِ عَنْ قَتْلِ الْأَعْوِنَةِ وَالظَّلَمَةِ وَالسُّعَاةِ فِي أَيَّامِ الْفَتْرَةِ: قَالَ يُبَاحُ قَتْلُهُمْ ؛ لِأَنَّهُمْ سَاعُونَ فِي الْأَرْضِ بِالْفَسَادِ ، فَقِيلَ إنَّهُمْ يَمْتَنِعُونَ عَنْ ذَلِكَ فِي أَيَّامِ الْفَتْرَةِ وَيَخْتَفُونَ.

قَالَ: ذَلِكَ امْتِنَاعُ ضَرُورَةٍ - { وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ} - كَمَا نُشَاهِدُ.

قَالَ وَسَأَلْنَا الشَّيْخَ أَبَا شُجَاعٍ عَنْهُ ، فَقَالَ: يُبَاحُ قَتْلُهُ وَيُثَابُ قَاتِلُهُ. ا هـ.

( قَوْلُهُ وَأَفْتَى النَّاصِحِيُّ إلَخْ ) لَعَلَّ الْوُجُوبَ بِالنَّظَرِ لِلْإِمَامِ وَنُوَّابِهِ وَالْإِبَاحَةَ بِالنَّظَرِ لِغَيْرِهِمْ ط

ردالمحتار/ج۳ص ۱۹۸/۱۹۷

فتاوی درالعلوم حقانیه /ج۵ص۳۰۲/۳۰۱

---

وفي البزازية: افتوا بأن قتل الاعونة والسعاة جائز في أيام الفتنة.

حاشية ردالمحتار/ج۱ص/۱۳۰

**ترجمه**: امام شامي رح دفتاوی بزازيه په حواله وايي چې دفتنې او فساد په وخت کې دحکومت په معاونينو او هغوئ ته جاسوسي کونکو يو عناصرو باندې دوئ دمرګ فتوی ورکړې ده.

---

دځينو فقهاوو له تصريحاتو څخه معلوميږي ،چې دفقه بعضي احکام دوخت وزمان سره اړه لري ،لکه يو وخت دامام ابوحنيفه رح په وخت دکوم مصلحت پر بنياد دکومې مجتهد فيها مسئلې حکم يو ډول وو ،بيا دصاحبينو په وخت کې هغه مصلحت يا هغه ضرورت منتفي شوي وو ،نو عمل بيا دصاحبينو په قول کيږي ،لکه په ا(العناية شرح الهداية کې چې امام ابوحنيفه رح داکراه لپاره دسلطان يا پاچا قدرت شرط باله ،خو نورو بيا دهر زورور يا قدرت مند شخص زور باندې اکراه ته تحقق ورکاوه، عام ددې نه چې دسلطنت واکې يې په لاس کې او که نه وي، خو دا دعصر او زمانې اختلاف وولکه چې وايي ...فَقَدْ قَالُوا هَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ لَا اخْتِلَافُ حُجَّةٍ وَبُرْهَانٍ ، وَلَمْ تَكُنْ الْقُدْرَةُ فِي زَمَنِهِ إلَّا لِلسُّلْطَانِ ، ثُمَّ بَعْدَ

ذٰلِکَ تَغَیُّرَ الزَّمَانُ وَأَهْلُهُ ، ثُمَّ کَمَا تُشْتَرَطُ قُدْرَةُ الْمُکْرِهِ لِتَحَقُّقِ الْإِکْرَاهِ یُشْتَرَطُ خَوْفُ الْمُکْرَهِ وُقُوعَ مَا یُهَدِّدُ بِهِ ، وَذٰلِکَ بِأَنْ یَغْلِبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّهُ یَفْعَلُهُ لِیَصِیرَ بِهِ مَحْمُولًا عَلَى مَا دُعِيَ إِلَیْهِ مِنْ الْفِعْلِ.... نو دحنفي مذهب دمتقدمينو اماماموله نظره دمسلمان جاسوس وژل ندي پكار، بلكې عقوبت او تعزير ورته ضروردی ، دلايل يې مخكې ذكرشول چې د(حاطب بن ابي بلتعه ﷺ)او (ابو لبابه ﷺ)روايتونه وو ،چې دتجسس سربيره له وژلو څخه معاف شوي وو.

خو هلته متقدمينو علماوو پر مسلمان جاسوس دمرګ پر ځای دعقوبت او تعزير حكم كړی و ، دادی اوسني مفتي صاحبان او علماء يې هم دنورو اصلاحي لارو دموجوديت په صورت كې حتمي مړينه باندې حكم نه كوي ،صرف عقوبت او سزا ورته تلقينوي ،او دا كار هم دمسلمانانو دامام پريكړې ته سپارې ،چې بله داصلاح لاره يې نه وي ،نووژنه يې تعزيراً او سياسةً روابولي ،شايد وجه يې داهم وي ،چې داوسنۍ زمانې جاسوسي آلات پرمختللي ، جاسوسان يې روزل شوي اود كفارو ګټو ته ډير وفادار دي ،كه يې پدا ډول قتل او وژنو له جاسوسۍ مخه ونه نيول شي، داسلام ددښمنانو مقابله به پيچلې شي ،لكه همدادمعاصرې او غښتلې فقهي جزئياتو مجموعې ( دارالعلوم حقانيه فتاوى )چې زمونږ استاذانو او اكابرو دفتواوو يوه په زړه پورې مجموعه ده، په ښكاره پكې ليكي:چې كه بله لاره يې داصلاح نه وه، نو دجاسوس وژل روادي، دلايل هم ځيني هماغه دي، چې متقدمينو ليكلي وو ،اوځيني يې پكې وراضافه كړل ،بل طرف ته كتل كيږي چې داحنافو امامان دمسلمان جاسوس لپاره عقوبت او تعزيز دده دجرم سزا بولي، پداسې حال كې چې دامام شامي رح په مصحح قول كې دعقوبت او تعزير ټاكل او تعينول امام ته مفوض او محول دي ،دادامام اختيار دی، چې دې جاسوس ته كوم ډول عقوبت وركوي ،آن تر قتل پورې يې سياسةً مجازات كولای شي ،اوداهم امام كولای شي، چې جلا وطن يې كړي، يا يې بل ډول تهديد كړي ،خو دابايد په ډاګه وو ايو ،چې دمسلمان جاسوس حتمي سزا يا عقوبت دده وژل ندې ،داسې هم نده ثابته چې په هرچا دجاسوسي تش تهمت وي ،امام يا مجاهدين به يې وژنې ،بلكې دشرعي اصولو له مخې به يا په خپل جرم بلا اكراهه اعتراف كوي، ځكه كه په جبر ترې دجاسوسۍ اقرار واخستل شي ،هغه هم شرعاً اعتبار نلري ،يا به دوه كسه ګواهان پرې شاهدي وايې ،اودا ګواهان به ددې متهم جاسوس سره كومه شخصي لانجه يا كومه بله ربړه نلري ،او دريمه لاره چې نن سبا دجاسوسي داثبات لپاره علماوو ضرور بللې، هغه دجاسوسۍ ځانګړي آلات او وسايل دي

ليکوال داسلامي نړۍ مفکر عالم مولانا سيد ابوالحسن علي ندوي (رح)
ژباړه : ش ' منصور '

# المرتضى کرم الله وجهه

## دامير المؤمنين علی ابن ابي طالب رضي الله عنه ژوند ليک

## کورنۍ !اوپه راتلونکي نسل يې اغېزي:

### علی ( رضي الله عنه ) د رسول الله ( صلی الله عليه وسلم ) په کفالت کې:

طبري پخپل تاريخ کې، پخپل سند د مجاهد نه روايت کړی :چې الله ( جل جلاله ) د خپلو ځانګړو لورينو څخه کوم خير اوبرکت چې د علی ( رضي الله عنه ) لپاره مقدر کړی و ، دهغه لپاره ظاهري سبب يا بهانه يې دا وګرځوله چې قريش په سخته تنګ لاسۍ او مصيبت کې ښکېل شول ،د ابو طالب اولادونه ګڼ ول رسول الله ( صلی الله عليه وسلم ) خپل تره عباس ( رضي الله عنه )ته ځوک چې دقريشو په شتمنو خلکو کې شماروه وويل:کاکا جانه ! ستا د ورور ابو طالب اولادونه ګڼ دي او تاته ښه معلومه ده چې ټول خلک د ستونزو سره مخ دي ، راځه ! زه اوته ، دهغه سره دنفقي پيټی يوڅه سپک کړو ، دهغه دځو اولادونو پالنه زه اوته په غاړه واخلو ! حضرت عباس ( رضي الله عنه ) وويل: ډېره ښه ده ، دواړه ابو طالب ته ورغلل ، ور ته وي ويل : مونږ د دې لپاره راغلي يو ، له کوم سخت حالت سره چې خلک مخ دي ، ځو دغه حالت پاته وي، مونږ غواړو تا سره داولادونو په پالنه کې ونډه واخلو، ځو له تا نه دنفقي پيټی يوڅه سپک شي ، ابوطالب په ځواب کې وويل: سمه ده خو عقيل ماته پرېږدئ ، دنورو په باره کې چې تاسي هره پريکړه کوئ هغه ماته دمنلو وړده.

رسول الله (ﷺ) پخپله غاړه دعلي (رضي الله عنه) کفالت واخست، او د حضرت جعفر (رضي الله عنه) کفالت عباس (رضي الله عنه) قبول کړ، له هغه وخت څخه علی (رضي الله عنه) له رسول الله (ﷺ) سره وتړل شو، تر دې پورې هغه وخت راغی، چې رسول الله (ﷺ) دالله (جل جلاله) له لوري دخپل استازي په توګه مبعوث شو، حضرت علی (رضي الله عنه) د رسول الله (ﷺ) اتباع وکړه، دهغه په صداقت یې ایمان راوړو اوجعفر (رضي الله عنه) دعباس (رضي الله عنه) په کفالت کې ترهغه پورې پاتې و څو چې کفالت ته اړتیا پاتې نشوه (تاریخ طبري ۲ټوک ۳۱۳مخ)

## د سیدنا علی (رضي الله عنه) د ایمان راوړو واقعه:

دابن اسحاق په روایت: علی بن ابی طالب (رضي الله عنه) یو ځل په داسې وخت کې راغی، چې رسول الله (ﷺ) او حضرت خدیجه (رضي الله عنها) دواړه په لمانځه وو، حضرت علی (رضي الله عنه) وویل: دا کومه معامله ده؟ رسو الله (ﷺ) ورته وویل: دا دالله (جل جلاله) دین دی، کوم چې الله (جل جلاله) دخپلو بنده ګانو لپاره غوره کړی دی اودهمدې لپاره الله (جل جلاله) پیغمبران رالیږلي، زه هم تا دهغه یوه خدای لورته بولوم، کوم چې یواځې معبود دی او هیڅوک شریک نلري، حضرت علی (رضي الله عنه) وویل: ما خو داخبره وړاندې نده اوریدلي څو ابو طالب ته ونه وایم، ترهغه مخکې کومه پرېکړه نشم کولی، رسول الله (ﷺ) داخوښه نکړه، چې ترڅو د اسلام علني دعوت نه وي شوی له هغه مخکې یې راز برسیره شي، نوعلی (رضي الله عنه) ته یې وفرمایل: که ته ایمان نه راوړې نو داخبره بیا ځان سره پټه اوساته، حضرت علی (رضي الله عنه) په دغه شپه غلی و، الله (جل جلاله) دهغه په زړه کې اسلام واچا و سهار وخته د رسول الله (ﷺ) په خدمت کې حاضر شو وې ویل: تا پرون ماته دکوم څه په اړه بلنه راکړې وه؟ رسول الله (ﷺ) وویل: ته ددې خبرې ګواهي وکړه چې دالله (جل جلاله) پرته بل هیڅوک معبود ندی، هغه یواځې معبود دی، دلات اوعزی نه انکار وکړه، دالله (جل جلاله) سره څوک شریک مه بوله، علی (رضي الله عنه) دشهادت کلمه وویله او اسلام یې راوړو، هغه به رسول الله (ﷺ) ته دابو طالب څخه پټ راته، اسلام یې د رسول الله (ﷺ) دحکم سره سم پټ کړی و، چاته یې نه و څرګند کړی. (البدایه والنهایه دابن کثیر ۳ټوک ۲۴مخ)

په دې روایتونو کې ثابت شوی او راجح روایت دادی چې: د حضرت خدیجه (رضي الله عنها) څخه وروسته حضرت علی ترټولو لومړی ایمان راوړی، او (په نارینه وو کې) لومړی هغه تن دی چې لمونځ یې کړی دی، له زید بن ارقم نه روایت دی چې: ترټولو اول ایمان

راوړونکی علی (رضي الله عنه) و ، د حضرت عبد الله بن عباس (رضي الله عنهما) روایت دی: چې د حضرت خدیجه (رضي الله عنها) نه وروسته لومړی شخص چې ایمان یې راوړی دی ، هغه حضرت علی (رضي الله عنه) و ، "محمد بن عبد الرحمان زراره" وایي: چې علی (رضي الله عنه) په نهه کلنۍ کې ایمان راوړی و ، مجاهد وایي: هغه لومړی شخص چې د رسول الله (ﷺ) سره یوځای یې لمونځ ادا کړی هغه علی (رضي الله عنه) و ، دغه مهال هغه د لس کلو و ، حسن بن زید وایي: علی (رضي الله عنه) هیڅکله هم د بوتانو عبادت ندی کړی ، ولې چې د هغه عمر کم و ، له دې څخه علاوه نور قرائن هم د دې ښو د نه کوي او د بشري فطرت د تجربې او مشاهدې سره هم سمون لري ، ولې علی (رضي الله عنه) د رسول الله (ﷺ) د روزنې په غیږه کې ستر ګې پرانیستې وي ، هم د رسول الله (ﷺ) د عاطفي سیوري ته لوی شوی و ، هغه غیږ چې په نیږدې راتلونکې کې د نبوت د انوارو چینه کیدونکې وه ، هغه د عاطفي سیوری چې د رحمت سیوري ګرځیدل یې مقدر و ، هغه د حق پیغام چې عام او خوریدونکی و ، د هغه په شتون کې (که کوم قوي مانع ، او فاسد طبعیت نه وي له کوم نه چې علی په هرډول خوندي و ، ) د اقدرتي خبره وه چې هغه باید ترټولو اول ایمان راوړی وي ،بعضې محقیقنو د اسې مختلف روایتونه رایوځای کړي چې په اهل بیتو او میرمنو کې ترټولو اول ایمان راوړونکې حضرت خدیجه (رضي الله عنها) وه ، په لویانو نارینه وو کې لومړی ایمان راوړونکی حضرت ابو بکر صدیق (رضي الله عنه) و ، په کم عمرو هلکانو کې ترټولو اول ایمان راوړونکی حضرت علی بن ابی طالب (رضي الله عنه) و او دا خبره قرین قیاس هم ده پخپله علی (رضي الله عنه) د حضرت ابوبکر صدیق (رضي الله عنه) د وفات پر مهال د نو موړی په اولیت باندې اعتراف کړی دی څنګه چې وروسته راځي

څېړنه:

هغه واقعه چې په اړه یې دا راغلي: کله چې دا لاندې ایت نازل شو:

وانذر عشیرتک الاقربین (خپلو نږدې خپلوانو ته بلنه ورکړه) نو رسول الله (ﷺ) د عبد المطلب اولاد ته د ملمستیا بلنه ورکړه د هغې په ترڅ کې یې ټولو ته د اسلام بلنه ورکړه ، هلته علی (رضي الله عنه) پورته شو او د خپل اسلام قبلولو اعلان یې وکړ ، ابولهب ورته په نهایتي ترخه لهجه ځواب ورکړ ، دا ټولې خبرې په تفصیل سره حافظ ابن کثیر د البدایه والنهایه په ۳ ټوک کې نقل کړې دي او ځینې نورو سیرت لیکونکو هم راوړي دي ، خو دا چې دلته مصنف (رحمه الله) ولې ندي راوړي ؟ وجه دا ده چې د دې واقعې په ځینو الفاظو

محدثینو کلام کړی دی ، او په دې کې ځینې خبرې هم شته چې دهغو په صحت یا نقل کې د شک گنجایش شته، له دې وجې یې دلته له پام غورځولي ، گڼو تاریخ پوهانو هم هم لیکلي: چې کله علی (رضي الله عنه) ایمان راوړو، هغه مهال نو موړی یوولس کلن و او کله چې هجرت یې کاو هغه مهال څلورویشت کلن و .

## دحضرت علی (رضي الله عنه) او ابوطالب ترمنځ څه پېښ شول ؟

دعلامه ابن اسحاق (رحمه الله) په روایت: دځینو علماوو په وینا: هرکله به چې دلمانځه وخت راغی ، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به دکوم غره څوکي ته ، ته، هلته به یې عبادت کا و ، علی (رضي الله عنه) به هم ورسره دخپل پلار ،ترونو اوکورنۍ دغړو څخه پټ ته ،ټول لمونځونه یې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) سره یوځای کول ، ماښام به بیرته کورته ،راته ، دالړۍ ترهغه روانه وه، څو چې دالله (جل جلاله) ته خوښه وه، یوه ورځ دواړو لمونځ کا و ،ابو طالب ولیدل ، ابوطالب له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه وپوښتل:ځما گرانه وراره !داکوم دین دی چې ته یې پیروي کړي ؟ رسو الله (صلی الله علیه وسلم) ځواب ورکړ :کاکا جانه !دادالله ، دالله دفرښتو ، دالله دپیغمبرانو ، اوزمونږ دنیکه ابراهیم (علیه السلام) دین دی ، دنورو روایتونو له مخې :الله (جل جلاله) زه خپلو بنده گانو ته داستازي په توگه را لیږلی یم ، اوکاکاجانه ! ته ترټولو زیات ته ددې خبري حقدار یې چې په ډېر اخلاص تاته هم ددې دین بلنه درکړم ! ابو طالب ځواب ورکړ :گرانه !زه دخپلو پلرونو دین اودهغوئ طریقې نشم پریښودی ، خوپه خدای (جل جلاله) سو گند څو چې زه ژوندی یم تاته به څوک نیغ هم ونه گوري ، دسیرت لیکونکو په وینا:چې ابو طالب خپل ځوی (علی رضي الله عنه) ته وویل: ځویه ! داکوم دین دی چې تا منلی ؟ علی (رضي الله عنه) وویل:پلاره ! ما په الله اود الله په رسول باندې ایمان راوړی دی ، دالله (جل جلاله) عبادت اودهغه درسول پیروي کوم ، دراویانو په اند:ددې په ځواب کې ابوطالب ویلي :هغه تا دښو خبرو لورته بولي، له دې وجې پرې ټینگ اوسه (دابن هشام سیرة ۱ټوک ۲۲۴مخ )

نوربیا




دروان (۲۰۱۳،ز) کال داکتوبر د مياشتې په لومړۍ نېټه د هلمند ولايت د ګرشک ولسوالۍ د يخچال د بلوچانو په سيمه کې يرغلګرو او داخلي عسکرو يو ملکي هيوادوال شهيد کړی دی.

داکتوبر په ۲مه د زابل ولايت د مرکز(قلات) اړوند د خارجوی په سيمه کې په يو مسافر وړونکې موټر باندې د داخلي عسکرو په ډزو کې درې تنه ملکي هيوادوال شهيدان شوي دي.

داکتوبر په ۲مه د هلمند ولايت په باغران ولسوالۍ کې ځايي پوليسو دوې ميرمنې په شهادت رسولې دي.

داکتوبر په ۴مه د پکتيا ولايت د جاني خيل ولسوالۍ په خنجکو کلي کې اربکي ملېشو پنځه تنه ولسي وګړي بنديان کړي دي.

داکتوبر په ۵مه د ننګرهار ولايت د بهسودو ولسوالۍ په سراچه سيمه کې د يرغلګرو په هوايي بريد کې پنځه تنه ولسي وګړي چې عمرونه يې د ۱۴ او ۲۰ کلونو ترمنځ وو شهيدان شوي دي ، د والي وياند عبدالزي دغه پيښه منلې په وينا چې همدې کسانو د جلال اباد هوايي ډګر سره نژدې د مرغيو ښکار کاوه چې د ايساف ځارګروالو تکو د مخالفوو سله والو ګومان ورباندي وکړ او له منځه يې يوړل.

همدارازداکتوبر په ۵مه يرغلګرو ځواکونو د شپنيو عمليا تو په لړکې د ميدان وردګ ولايت د چک ولسوالۍ په نيک پای د چمړې کلي کې د شيرا غا په نوم يوه ولسي هيوادوال پرکورچاپه وهلې ،د نوموړي په کورکې يې د تلاشي پرمهال هيڅ تخريبي توکي نه دي موندلي خو ډېر مالي زيان يې ورته اړولی او په اخرکې ا شغالګرو عسکرو يوه ښځه اووه تنه نارينه شهيدان کړي او يوه ميرمنه او څلور سړي يې بنديان کړي دي.همدغه پيښه د دغه ولايت وياند عطاءالله خوګياڼي هم تائيد کړې ده.

دځايي خلګو په ويناد اکتوبر په لومړۍ اونۍ کې د کندهار ښار او شاوخوا سيمو کې پوليسو ځلو ښت تنه ولسي وګړي د طالبانو په تورنيولي اووژلي دي ،دوژل شوو کسانو جسدونه په زاړه ښار ،سره کلا او محله نجات کې پيدا شوي دي .همدا ډول وژني د سهېلي حوزې د بشري حقونو خپلواک کميسيون هم ديوه راپور په خپرولو سره تائيد کړي ،دبشري حقونو خپلواک کميسيون په راپورکي ويل شوي چي په وروسيتو مياشتو کي يې په کندهار کي د سلهاوو تند نادرکه کيدو عارضې ترلاسه کړي په ياد شوي راپورکي د کندهار ښار او رڅېرمه سيمو کي د مرموزووژنو پر پراخيدو اند ېښنه ښوول شوې ،کميسيون دهمدې ډول وژنو يوه بېلګه پخپل راپور کي ذکرکړې ده :«دکندهار ښارددوهمي حوزې ديخ کاريز سيمي څخه ځلور تنه نادرکه شوي چي وروسته يې مړي په ميرويس روغتون کي موندل شوي دي ،راپورد يو عيني شاهد له قوله ليکي چي:پنځه ورځي مخکي د پوليسو يو شين رنګه ټانګ راغی او همدا وژل شوي کسان يې چي دووتنو يې دلرګيو ټال کاوه له ځان سره بوتلل او دادی چي اوس يې مړي پيدا شول».

داکتوبر په ۷مه د ميدان وردګ ولايت د سيداباد ولسوالۍ دتنګي درې په درانيو او محمد امين ښار کليو کي نيواکګرود چاپې پرمهال دخلګو کورونه تلاشي کړي مالي زيانونه يې ورته اوړلي او بيا يې ځلور تنه ولسي وګړي له ځان سره وړي دي.

داکتوبر په ۷مه د بلخ ولايت د چمتال ولسوالۍ په نړاري سيمه کي اربکيانو يو ملکي وګړی (يوسف د مهراب زوی )شهيد کړی ،دځايي خلګو په قول يوسف يو عام کليوال ؤ له هيڅ لوري سره يې اړه نه درلوده.

داکتوبر په ۷مه يرغلګرود ميدان وردګ ولايت د سيداباد ولسوالۍ داونخي درې په حکيم خېل ،ياويزاو سره کلا کليو کي چاپې وهلي ،دخلګو د کورونو دروازې يې په بمونو الوزولې ،خلګ يې وهلي او تهديد کړي دي او سربېره پردې اته تنه ولسي هيوادوال يې بنديان کړي هم دي.

د سيمه ييزو او سيدونکو دوينا په اساس يرغلګرود تلاشۍ پرمهال پراخ مالي زيانونه ورته اړولي:«۱مازدا ،۱ټونس او ۲موټرسايکلونه يې په حکيم خېل او۱ټونس موټريې په ياويز کلي کي سوځولی دی»همدا رازدوی وايي چي نيول شوي کسان ټول ملکي غريب کارخلګ دي له چاسره تړاو نه لري.

داکتوبر په ۸مه نیواکګروځواکونود ننګرهارولایت داچپن ولسوالۍ په پیشي کلي کي دنجیب الله په نوم یوه هیوادوال پرکوریرغل کړی ،یرغلګرودکورڅښتن (نجیب الله) میرمن اویوزوی یې شهیدان کړي اودنوموړي یوزوی اووراره یې دبندیانو په توګه له ځان سره وړی دی .دسیمه ییزوخلګوپه وینایرغلګروپه دغه چاپه کې دیادشوي ظلم سربیره نغدي پیسې ،ګڼې اونورقیمتي شیان هم له ځان وړي دي.

داکتوبر په ۸مه رسینوخبرورکړچي داروزګان ولایت د چنارتو ولسوالۍ په لنګراوپاتان سیموکي یرغلګروځواکونودپنځلسوورځوراهیسي دولسي خلګوپرکورونه چاپې پیل کړي ،په دغه خبرکې ویل شوي چي یرغلګرودچاپوپرمهال په یادوشووسیموکي ګڼ شمېرولسي وګړي (سپین ږیري ،ځوانان اوماشومان )وهلي اوشکنجه کړي دي.

داکتوبر په ۸مه دفاریاب ولایت د قیصار ولسوالۍ دزیارت ګاه په سیمه کي اربکي قوماندان (رسول )یومشهوردیني عالم (مولوي غلام نبي )شهیدکړی دی.

داکتوبر په ۹مه رسنیودسیمه ییزوخلګوله قوله خبرورکړچي :داخلي عسکرودننګرهارولایت دخوګیانوولسوالۍ دکوزبهارپه سیمه کي له دووورځوراهیسي عملیات شروع کړي ،دوی دعملیاتوپرمهال ولسي خلګ وهلي اوځورولي اوهمدارازدخلګوله کورونوڅخه یې نغدي پیسې ،زراونورقیمتي شیان له ځان سره وړي دي. ولایتي ویاندعبدالزي هم په دغوعملیاتوکي له خلګوسره دپوځیانوناوړه چلندمنلی دی.

داکتوبرپه۱۰مه دفراه ولایت د بکوا ولسوالۍ دګراني په سیمه کي یرغلګرو اوداخلي عسکروچاپه وهلې ،اته تنه ملکي هیوادوال یې چي ځلورته یې سپین ږیري ووبندیان کړي اوهمدارنګه دتلاشۍ پروخت یې دخلګوپیسې اونورقیمتي شیان هم له ځان سره وړي دي.

داکتوبرپه۱۱مه دکندهارولایت د ژړۍ ولسوالۍ دسنزري دانارک په سیمه کي نیواکګروځواکونودچاپې پرمهال د( لعل بازاکا )په نوم یوولسي وګړی او دوه زامن یې شهیدان کړي دي.

داکتوبرپه ۱۲مه ددایکنډي ولایت دګیزاب ولسوالۍ کي پولیسواو اربکیانو له طالبانوسره ترسختي نښتي وروسته ددغي ولسوالۍ مربوط په سنګ شیخ سیمه کي شل تنه ولسي وګړي شکنجه کړي اوبندیان کړي دي دعیني شاهدانوله خولې پولیسواواربکي ملېشوپه سیمه کي دولسي خلګودوه کورونه سوځولي اویوشمېرنور کورونه یې بیاچورکړي دي.

داکتوبرپه **۱۳**مه د کونړ مرکز اسعد اباد ته نږدې د یرغلګرو ځواکونو پر اډه طالبانو برید کړی ،ځايي خلګو رسنيو ته ويلي چې وروسته بيا د اشغالګرو په ځوابي حمله کي دوه ماشومان شهيدان شوي او پنځه تنه ولسي وګړي چې درې يې ښځي دي ژوبل شوي دي.

داکتوبرپه **۱۴**مه اشغالګرو دهلمند ولايت د نوزادو لسوالۍ په خاوې سيمه کي د چاپې په ترخ کي څلورتنه ملکي وګړي بنديان کړي دي.

داکتوبرپه **۱۲**مه دهلمند ولايت دګرمسير او خانشين ترمنځ په وزيراباد سيمه کي د يرغلګرو دبې پيلوټه الوتکې په بريد کي دوه تنه ملکي وګړي شهيدان شوي دي.

داکتوبرپه **۲۰**مه دفراه ولايت د بالابلوک ولسوالۍ په کنسک سيمه کي اربکيانو دخپل قومندان (ملهم جو )په غچ کي څلورتنه دقران کريم حافظان چي عمرونه يې **۱۴**کاله وو شهيدان کړي او لس تنه ولسي وګړي يې اسير کړي دي.

داکتوبرپه **۲۱**مه دکندهار ولايت د ارغستان ولسوالۍ دباغ کلي څخه پوليسو دوه تنه ولسي وګړي بيولي او بيا يې شهيدان کړي دي.

داکتوبرپه **۲۲**مه دزابل ولايت د شهرصفا ولسوالۍ په ماتيان سيمه کي داخلي پوځيانو دچاپې پرمهال يو ملکي سړی شهيد کړی او يو بل تن يې ژوبل کړی دی.

داکتوبرپه **۲۵**مه دفراه ولايت د فراه رود ولسوالۍ دخم مسجد په سيمه کورنيو عسکرو څلورتنه ملکي وګړي بنديان کړي او دولسي خلګو يو موټرېې سوځولی دی.

داکتوبرپه **۲۲**مه داروزګان ولايت دمرکز اړوند دپای ناوې دوچ کاريز په سيمه کي پوليسو د ځايي تجارانو موټرد غلا په موخه ودراوه ،وروسته د پوليسو او تجارو ترمنځ نښته رامنځته شوه چي په پايله کي يې دوه تنه ولسي تجار شهيدان او څلورتنه زخميان شول ،همدارازيو پوليس هم په دغه په نښته کي ووژل شو.

داکتوبرپه **۲۲**مه په مرکزي بغلان کي د اشغالګرو په بمبارکي دوه تنه ولسي هيوادوال شهيدان شوي دي.همدارازپه ياده شوې نيټه يرغلګرو او داخلي عسکرو دزابل ولايت د شاجوی ولسوالۍ کي د چاپې پروخت يوه ميرمن سخته وهلې ده.

مأخذونه:[بي بي سي راډيو ،ازادي =،افغان اسلامي اژانس ،پژواک = ،لراوبرويب پاڼه ،بينوا= ،نن ټکی اسيا=،اوروهي =]

# پګړۍ او اوسنی طب

عبدالغفار جبیر

لنګوټه تړل یو سنت نبوی صلی الله علیه وسلم دی، چې په دې مبارک سُنت کې زښته ډېرې ګټې نغښتې دی او داسترې ګټې ترشماروتلي دي ،زه به یې یوڅو وتاسوته وړاندی کړم انشاء الله، اودا نبی کریم صلی الله علیه وسلم معمول وو ،چې لنګوټه یې پررخچینه(خولۍ) تړله او پاتې دې نه وي چې په لنګوټه کې داخرت دثواب څخه علاوه په دې نړۍ کې هم ډېرې نورانی ګټې پرتې دي-

۱: دفزیالوجي دعلم او څېړنو مطابق کله چې د سرماغزه او حرام مغزمحفوظ وي نود انسان دبدن اعصابي جهاز او عضلاتی جهاز ډېر منظم وي، او انسان دهرخطرڅخه خلاصون مومي-

۲: ددماغ دهرډول خارجی صدمې لپاره لنګوټه یوائنی اسانه دژغورلو طریقه ده، اوداهغه وخت ښکلې شي چې کله شمله هم داوږو په مابین کې پرېښودل شي، یوبه سنت پرځای شي اوبل به ارام مغز وساتل شي-

۳: دلنګوټې د پرسرکولو او دلنګوټې دشملې وشاته کولو سره انسان دفلج دناروغۍ څخه ژغورل کیږي، داځکه چې لنګوټه سراو دملاتیر دټولو ستونزو څخه ساتي-

۴: دلنګوټې په تړلو سره دسردرد ډېر کمیږی، داځکه چې که سر پخپل عادی حالت کې وي نه ډېر ګرم وي اونه هم ډېر یخ وي؛ چې داعادي حالت دانسان لپاره غوره دی-

۵: دلنګوټې په تړلو سره دماغ قوي کیږي او حافظه ورسره زیاتیږي چې دادروسي ډاکترانو تجربه ده.

۶: دلنګوټې په تړلو سره دایمي نزله له مینځه ځي او که وي نو اغیزې به یې کمې وي-

۷: لنګوټه د پوښتیو دهډوکو دسوخت لپاره یوائنی علاج دی-

۸: لنګوټه انسان دګوډتوب څخه ساتي، داځکه چې لنګوټه ټول اعصابی سیستم ساتي-

۹: لنګوټه یودویاړتاج دی، ښکلاده چې انسان باوقاره، باحیثیته اوعزتمند ښکاره کوي-
۱۰: په زلزلو، طوفانو، تیرزباد اویابل ناورین کي لنګوټه غوړونه دهرډول تکان اونقصان څخه ساتي-
۱۱: لنګوټه دسروښتیان ډېرښه ساتي، نه یې پرېږدي چې مات، رنګ یې ولاړشي اویاهم بې ځایه اویاهم ورژېږي-
۱۲: روغتیاپالانوداثابته کړېده چې دنه خولې اویاهم دنه لنګوټې په صورت کي دسروښتیان ماتیږي، سپینیږي اورژیږي، داځکه چې پروښتیانوبادونه، سړه هوا اوګرمه هواا غیزې کوي چې داغیزوپه صورت کي په وښتیانوکي تغیرراولي-
۱۳: Medical of Sociology دسوشیالوجی دعلم له نظره لنګوټه ډېرې ګټې لري-
۱۴: لنګوټه دسر، غاړې، ستونی اوغوړوپه ساتلوکي ځانګړې ارزښت اوځای لری-
۱۵: Nervous Temperament (اعصابي مزاج) ډېرژردګرمې اویخنې تراغیزولاندی راځي چې لنګوټه ئې یوطبعي، قدرتي اواسانه درملنه ده-
۱۶: لنګوټه سردټولوخارجي ټکرونوڅخه ژغورئ، مطلب داچې که چیرې یوټکرپېښیږې نولنګوټه داعصابوپه ساتولوکي مهم رول لري-
۱۷: لنګوټه حرام مغز (Spinal Cord) دلمروهلو (Sun Stroke) اوتودې لمبې (Heat Stroke) څخه په پوره ډول سره ژغورئ-
۱۸: لنګوټه انسان دلیونتوب، اعصابي حملې، ناڅاپي مرګ اوډېرونوروغیوڅخه ساتي-
۱۹: که یومسلمان چیری مړشی اوکفن ئې نه وی نولنګوټه ئې کفن دی-
۲۰:که چیری په یوه ټکرکي دیوچالاس اویاهم پښه ماته شی نولنګوټه ئې پلاسترده، ترڅوچې وروغتون ته یووړل کیږی-
۲۱:لنګوټه داعصابي مزودښې دندې دترسره کولولپاره یواځنی لاره ده-
۲۲: لنګوټه ومخته رعب اوښکلاوربخښي.
۲۳: دجنګ اوزلزلو،دطوفانواوباداوباران، تیزاوازونوڅخه دغوړونو دژغورلولپاره لنګوټه یواځنی درمل ده.
۲۴: دهوایی حملوڅخه دژغورلولپاره لنګوټه سرې دګرځو نو او ږغونوڅخه ژغورئ.
۲۵: دکوم ټکرپرمهال لنګوټه دپټې پرځای باندی هم استعمالیدلای شی.
۲۶: لنګوټه دپټو(څادر) پرځای باندی هم استعمالیدلای شي.

۲۷: دبې هوښۍ (Shock) په حالت کی د (Presure Bandage) پرځای باندی دیوه انسان ژوند ژغورلای شي.

د پټکی مسائل او فضائل -- (نبوی سُنتونه او نوی څېړنې) ،

Islam and Medical Science, The Philosophy of Islam

## دلنګوټې په لیدو لوسره مااسلام قبول کړ!!!

زه ترکیې ته د سیاحت لپاره ولاړم چې هلته ښکلي مسجدونه، ښکلي ځایونه او اسلامي تاریخي اثاروو ینم، چې د لومړي ځل لپاره د سلطان فاتح محمد و مسجد چې ډېر لوی، ښه ښکلی او یو ډېر ښه چمن یې و مخته درلود ولاړم، ودې مسجد ته یې ډېره ساحه ورکړېده، زه په چوکۍ باندی ناسته یم چې ودې ډول ډول خلکو ته ګورم، یو څوک په یوه ژبه خبرې کوي، او بل څوک په بله ژبه؛ یو چا یو ډول کالي اغوستي وي او بل چا بل ډول، چې هر څه د تو پیر په څېر کي وینم، یو ښکلی غټ سړی مې ولید چې ددې مسجد امام وو، توره غټه چپنه ئې په تن وه، او ښکلې سپینه لنګوټه پر سروه و مسجد ته داخل شو، اذان وشو، او عبادت پر ځای شو، امام صاحب بیرته راووت او ولاړ، له ځانه سره می فکروکړ چې دا څو مره ښکلی دین دی چې دا لنګوټه ئې پرسرده، دا راته معلومه وه چې یو وخت داسې راځي چې د لمرزهرجنی شعاوې به مځکې ته راځي، چې هر ورځ به په لسهاوو خلک لیونیان، اعصابیان او فلجیږی به؛ دا ځکه چې د لمرزهرجني شعاوي به داوزون ($O_3$) څخه راوځي او دابد حالت به ضرور راځي دا ځکه چې همدا اوس لا په اوزون کی بدلون راغلی دی، سوري پکښې پیدا شوي دي او د مځکې د کُرې تودوخه تر پخوا ډیره شویده، چې همدا ناورین له شین کور یز و غازونو څخه راټوکیدلی دي او په تدریجي ډول سره به دا سوري غټیږي او بیا به پر دې مځکه باندی ژوند ګران وي ؛ خو په دې دین (اسلام) کي ددغه بدلون او ناورین لپاره هم بندوبس شویدی ۱۴ پیړۍ مخکی، نو دادین د بشر څخه سرچینه نه اخلي بلکي دادین الهي دین دی؛ په راتلونکي ورځ کي مې دهغه امام سره ملاقات وشو، هغه ډېر د اسلام د حقانیت په اړه معلومات راکړل ما د لنګوټې په هکله ورڅخه و پوښتل هغه د لنګوټې په هکله نور ډېر فضایل او ساینسي معلومات راکړل، زه ورڅخه اغیزمنه شوم او دده هرې خبرې زما په زړه کی ځای پیدا کړ، د اسلام نورانیت می وزړه ته داخل شو، په ځان کی مې د بدلون څپې په ولولو شوي، یو نه لیدونکی انقلاب مې په تن کې په خوځښت شو، زه ددې انقلاب قرباني شوم او خوښه او راضي هم شوم ، چې همدا زما د خوښۍ

انقلاب ؤاوزمادژوندارزواوتمنا وه، ده د هرشئ په هکله چې ماپوښتنه کوله قناعت بخش ځوابونه یې راکړل، ماته یې دلنګوټې پرځای دپورنۍ توصیه وکړه اوداسلام بلنه یې هم په ورین تندي راکړه اومادا سلام راوړولو ورسره موافقه وکړه اوچې کله خپل وطن (برطانیه) ته راغلم ،نوپه اسلام مشرفه شوم- چې زه اوس په پورنۍ کې ډیره خوښه یم، دپورنۍ لپاره مې تورپنډه رخت انتخاب کړ، زه اوس په دې پورنۍ کی ډیره ښکلې ښکارم لله الحمد ، یومسلمان نرمې په لنګوټه کې ډیر ښه ښکاري اویوه مسلمانه خورمې په پورنۍ کې ښه ښکاري، اوزه ټول وخپلو مسلمانوورونړاوخویندوته داتوصیه کوم؛

(The Power of Faith: my tour, I was in Turkey)

دلنګوټې ارزښت وموږته ښه معلوم دی!!!

دادیوه افریقایي مسلمان ویناده، یوه ډله خارجیان چې افریقې ته دمعلومات دراټولولوپاره تللی وه، اوغوښتل ئې چې دافریقې دخلکو عنعنات وڅیړي، اوبیایونړیوال خبرورڅخه جوړکړي؛ په دې ترڅ کې دجیمزبراون په نامه یوسړی چې یوډله نورملګري هم ورسره وه، دیوه افریقایي مسلمان څخه وپوښتل چې دادی څه شئ پرسرده؟

دې افریقایي مسلمان ورته په خنداوویل چې دالنګوټه ده-

جیمزبراون: دادڅه لپاره استعمالوي؟

افریقایي مسلمان: داددې لپاره چې ځانونه دګرمۍ څخه وساتو، اودلته هغه خلک چې لنګوټې نه پرسرکوي هرورځ یې حالت بدوي، مري، اویاهم خپل اعصاب له لاسه ورکوي؛ نوځکه دامادځان ژغورولپاره تړلې ده-

جیمزبراون: چادرته وویل چې داوتړه؟

دازمــوږدګران اوخوږپیغمبرصــلی الله علیــه وســلم مبــارک سُـنت دي، اوداطریقــه د۱۴۰۰کالوراهیسې راروانه ده، اوترهرچاوماته ددې لنګوټې ارزښت ښه معلوم دی-

(The History of Africa)

په پاکه اسلامی مینه

# محبت مسلمانان به همدیگر

اخذ واقتباس: مصلح

اما دوستی مسلمانان نسبت به همدیگر محبتی است که اعجاز می‌کند و دلها را باهم پیوند می‌دهد و میان دلها أنس و الفت پدیدار می‌کند، و نیز میان دل‌ها کاخی رفیع و استوار بر پای می‌دارد که هیچ چیز آن را ویران نمی‌کند، و این پیوند از قبیل ارتباط خانوادگی، تعاون و یاری به یکدیگر و ایجاد برادری و دوستی است.

محبت است که شادی و لبخند را در دل ایجاد می‌کند، درون‌ها را گشاده می‌گرداند و چهره‌ها را باز می‌کند، و انسان با لب خندان و رویی باز و گشاده با برادر دینی اش برخورد می‌کند.

و به راستی در این مورد راهنمائی‌ها و ارشادهای رسول خدا صلی الله علیه وسلم فراوان است، زیرا رسول خدا صلی الله علیه وسلم می‌دانست، اُمتی که برادری محبت و تعاون و یاری آن را اداره و راهنمایی نکند، پایه‌ها و اساس آن خراب و فروریزنده است و از بخشایش و یاری خداوند بزرگ بی‌بهره است، زیرا خداوند یار و یاور بنده‌ای است که او برادر دینی اش را یاری نماید، و اینک با خواست خدا برخی از سخنان و احادیث رسول خدا صلی الله علیه وسلم را بیان خواهم کرد که راه‌های بزرگ و مهم و باارزش را برایمان ترسیم کرده است تا بدان راه محبت و دوستی و برادری را پیش گیریم.

و از آنجمله حدیثی است که مسلم از انس بن مالک رضی الله عنه و او از رسول خدا صلی الله علیه وسلم روایت کرده است که فرمود: «لاَ يُؤمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّى يُحِبّ لِأَخِيهِ -أَوْ قَالَ لِجَارِهِ- مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ» «ایمان هیچیک از شما کامل نمی‌گردد مگر این که آنچه برای خود دوست می‌دارد، برای برادرش -یا همسایه اش- دوست بدارد.«

اگرچه واژه «أَحَدُكُمْ» ویژه مخاطبین و شنوندگان است، اما مفهوم آن همه مسلمانان را در هر عصری و در هر زمانی شامل می‌شود.

و در روایت دیگر «لاَ یُؤمِنُ أَحَدٌ، أَوْ عَبْدٌ» آمده است که به صراحت و آشکارا بر این عمومیت دلالت دارد.

منظور از «أَخٌ» = برادر در این حدیث، برادری اسلامی است که همه مسلمانان را از هر نژادی شامل است. همانگونه که برخی روایات بدان دلالت دارد که «حَتّی یُحِبَّ لأَخِیْهِ الْمُسْلِمِ». بنابراین، مسلمانان با وجود تفاوت و اختلاف در ملیت و نژاد و سرزمین و زبان یک خانواده و یک ملت واحد به شمار می‌روند، (انما المؤمنونه اخوه)( ) «به راستی که مؤمنان – مسلمان – باهم برادرند.«

و در روایت نسایی آمده است» : وَالذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لا یُؤْمِنُ أَحَدُکُمْ حَتی یُحِبَّ لأَخِیْهِ مَا یُحِبُّ لِنَفْسِهِ مِنَ الخَیْرِ» «سوگند به خدا، ایمان هیچ یک از شما کامل نمی‌گردد مگر این که آنچه برای خود دوست می‌داری از کارهای خیر و نیک، برای برادرش نیز دوست بدارد.«

و این قید و شرطی است که باید در حدیث آورده شود، زیرا کسی که میل و رغبت به شهوات و منکرات و مُحرمات دارد، هرگز ایمانش کامل نیست که آن را نیز برای دیگر برادران مسلمانش دوست بدارد، و نص صریح بر آن دلالت دارد که منظور از دوست داشتنی از نظر شرع کارهای خوب و نیک است، و این کارهای خیری است که منطبق با شریعت است، و کارهایی است که تماماً بهره و پاداش اُخروی دارند از قبیل: علمِ سودمند، عمل شایسته و عاقبت و سرانجام نیک، و اما از کارها و بهره‌های دنیایی تنها چیزهایی حلال و نهی نشده را شامل است، مانند: توسعه و گسترش روزی حلال و پاک و داشتن فرزندان نجیب و باادب و نیکوکار و برخورداری از عمر دراز و دوری از زشتی‌ها و آلودگی‌ها و امثال آن.

و از آنجمله فرمودهٔ آن حضرت صلی الله علیه و سلم که ترمذی از عبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت کرده است» : خَیْرُ الأَصْحَابِ عِنْدَ اللهِ خَیْرُهُمْ لِصَاحِبِهِ وَخَیْرُ الجِیرَانِ عِنْدَ اللهِ خَیْرُهُمْ لِجَارِهِ» «نزد خداوند بهترین یاران نیکوکارترین ایشان است نسبت به دوستش و بهترین همسایگان بهترین و نیکوکارترین ایشان است در رابطه با همسایه اش.«

و از جمله ارشادات آن حضرت ﷺ روایت مسلم از ابوهریره است که «إِنّ اللّهَ یَقُولُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ أَیْنَ الْمُتَحَابُونَ بِجَلاَلِی الْیَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِی ظِلِّی یَوْمَ لاَ ظِلّ إِلاّ ظِلّی» «به راستی خدای تعالی در روز قیامت می‌فرماید: کجایند کسانی که به خاطر عظمت و بزرگی و اطاعتِ من همدیگر را دوست می‌دارند که امروز آنان را در سایه پناه خود جای دهم، روزی که هیچ سایه و پناهی جز سایه و پناه من موجود نیست.«

و از آنجمله فرمایش رسول خدا صلی الله علیه و سلم است که مسلم از ابوهریره رضی الله عنه روایت کرده است» : أَنّ رَجُلاً زَارَ أَخًا لَهُ فِی قَرْیَةٍ أُخْرَی فَأَرْصَدَ اللّهُ لَهُ عَلَی مَدْرَجَتِهِ مَلَکًا فَلَمّا أَتَی عَلَیْهِ قَالَ أَیْنَ تُرِیدُ قَالَ أُرِیدُ أَخًا لِی فِي هَذِهِ الْقَرْیَةِ. قَالَ هَلْ لَکَ عَلَیْهِ مِنْ نِعْمَةٍ تَرُبُّهَا قَالَ لاَ غَیْرَ أَنّي أَحْبَبْتُهُ فِي اللّهِ عَزّ وَجَلّ. قَالَ فَإِنّي رَسُولُ اللّهِ إِلَیْکَ بِأَنّ اللّهَ قَدْ أَحَبّکَ کَمَا أَحْبَبْتَهُ فِیهِ» «که مردی از برادرش در روستایی دیگر

دیدن کرد و خداوند فرشته‌ای را بر نگهبانی مسیر و راه او گماشت تا او را بپاید و چون فرشته او را دریافت، پرسید که می‌خواهی به کجا روی؟ مرد گفت: می‌خواهم به دیدن برادری که در این روستا است بروم، فرشته گفت: آیا ثروت و نعمتی نزد او داری که به خاطر جمع‌آوری آن نزد وی می‌روی؟ گفت: خیر، جز این که او را به خاطر رضا و خرسندی خدای عزوجل دوست می‌دارم، فرشته گفت: به راستی من فرستاده خدای بر تو هستم، و قطعاً خداوند ترا دوست می‌دارد آنگونه که تو او را دوست داری.

امام نووی / گفت: محبت و دوستداشت برادر دینی به خاطر رضای خدای تعالی فضیلت فراوانی دارد، و نیز سببی است که خداوند بنده اش را دوست بدارد و نیز مزیت و فضیلت دیدار صالحان و پارسایان را دربر دارد، و دلالت دیگر این حدیث آن است که گاهی انسان‌ها نیز فرشتگان را می‌بینند.

و از آنجمله فرمودهٔ دیگر رسول خداست که امام احمد و ابویعلی و حاکم با اسناد صحیح از ابی مالک اشعری رضی الله عنه روایت کرده اند که گفت: رسول خدا صلی الله علیه وسلم فرمود: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ اسْمَعُوا وَاعْقِلُوا وَاعْلَمُوا أَنَّ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ عِبَادًا لَيْسُوا بِأَنْبِيَاءَ وَلاَ شُهَدَاءَ يَغْبِطُهُمُ الأَنْبِيَاءُ وَالشُّهَدَاءُ عَلَى مَجَالِسِهِمْ وَقُرْبِهِمْ مِنَ اللَّهِ. فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الأَعْرَابِ مِنْ قَاصِيَةِ النَّاسِ وَأَلْوَى بِيَدِهِ إِلَى نَبِيِّ اللَّه -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ نَاسٌ مِنَ النَّاسِ لَيْسُوا بِأَنْبِيَاءَ وَلاَ شُهَدَاءَ يَغْبِطُهُمُ الأَنْبِيَاءُ وَالشُّهَدَاءُ عَلَى مَجَالِسِهِمْ وَقُرْبِهِمْ مِنَ اللهِ انْعَتْهُمْ لَنَا –يَعْنِي صِفْهُمْ لَنَا – فَسُرَّ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِسُؤَالِ الأَعْرَابِىِّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- هُمْ نَاسٌ مِنْ أَفْنَاءِ النَّاسِ وَنَوَازِعِ الْقَبَائِلِ لَمْ تَصِلْ بَيْنَهُمْ أَرْحَامٌ مُتَقَارِبَةٌ تَحَابُّوا فِى اللهِ وَتَصَافَوْا يَضَعُ اللَّهُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنَابِرَ مِنْ نُورٍ فَيُجْلِسُهُمْ عَلَيْهَا فَيَجْعَلُ وُجُوهَهُمْ نُوراً وَثِيَابَهُمْ نُوراً يَفْزَعُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يَفْزَعُونَ وَهُمْ أَوْلِيَاءُ اللَّهِ الَّذِينَ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ». رسول خدا صلی الله علیه وسلم فرمود: «ای مردم بشنوید و بیندیشید و بدانید که به راستی خدای تعالی را بندگانیست که نه از پیامبرانند و نه از شهیدان که پیامبران و شهیدان بر جایگاه و منزلت و قربت آنان به خدا تعالی رشک می‌برند، و آرزو دارند از آن جایگاه و منزلت برخوردار باشند.

مردی از اعراب –که دورتر از مردمان بود – روی زانوانش ایستاد و دستش را بلند کرد و اشاره نمود و گفت: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! آیا انسانی از انسان‌ها است که نه از پیامبران و نه از شهیدان است، و حال این که پیامبران و شهدا بر منزلت و جایگاه آنان رشک می‌برند و آرزوی این قربت را دارند؟ پس ایشان را بر ما توصیف فرمای. رسول خدا صلی الله علیه وسلم از سوال مرد اعرابی شادمان گردید و فرمود: ایشان مردمانی غریب و گمنام هستند که پیوند و وابستگی خانوادگی باهم ندارند، و به خاطر رضا و خرسندی و فرمانبرداری از خدای تعالی است که همدیگر را دوست می‌دارند و باهم صمیمی و یکرنگند، خدای تعالی در روز رستاخیز تخت‌ها و صندلی‌هایی از نور برایشان نهاده است و آنان برآن صندلی‌ها و تخت‌ها می‌نشینند، و خداوند صورت ایشان را غرق در نور کرده و

جامه‌ای از نور بر تن ایشان پوشانیده است، و در روز رستاخیز همه در بیم و هراسند، و آنان ترسی و هراسی ندارند و ایشان دوستان خدایند و هیچ بیم و هراسی بر ایشان نیست و نیز اندوهی ندارند.«

و از ابی ادریسِ خولانی روایت است که گفت: وارد مسجد دمشق شدم، در همان لحظه جوانی را که دندان‌های سفید و براقی داشت، دیدم و مردمان پیرامونش بودند و چون در مسأله‌ای اختلاف پیدا می‌کردند نظر خود را با او می‌گفتند و از رأی و نظر او بهره‌مند می‌شدند، پس در باره او سؤال کردم، گفتند: این جوان معاذ بن جبل است.

چاشت روز بعد که برای نماز آمدم، آن جوان را دیدم که در گزاردن نماز چاشتگاه از من پیشی گرفته و او را در حال نمازخواندن یافتم، پس در انتظار ماندم تا نمازش را به پایان بُرد، سپس از مقابل نزد او رفتم و بر او سلام کردم و گفتم، به خدا سوگند ترا به خاطر رضای خداوند دوست می‌دارم، چند بار گفت: آیا فقط برای خدا مرا دوست می‌داری؟ در پاسخ گفتم: آری، فقط برای رضای خدا، و نه به خاطر هدف و خواستِ دیگر. گوشهٔ عبایم را گرفت و مرا به سوی خود کشید و گفت: شاد و خرسند باش به راستی که از رسولَ خدا صلی الله علیه وسلم شنیدم که فرمود: خدای تبارک و تعالی می‌فرماید: به کسانی که به خاطر رضای من همدیگر را دوست می‌دارند، دوستی و محبت خویش را واجب گردانیدم، و نیز به کسانی که به خاطر رضای من باهم همدمی و هم‌نشینی می‌کنند و بهم یاری می‌رسانند و به دیدار هم دیگر می‌روند و در راه من می‌بخشند محبتم را لازم و قطعی گردانیدم.( )

ابوداود از ابی امامه رضی الله عنه روایت کرده است که رسول خدا صلی الله علیه وسلم فرمود: «مَنْ أَحَبّ لِلهِ وَأَبْغَضَ لِلهِ وَأَعْطى لِلهِ وَمَنَعَ لِلهِ فقَد اسْتَكْمَلَ الإِيمَانَ» «کسی که به خاطر خدا دوست بدارد، و بَه خَاطر خداَ خَشم گیرد وَ بَه خاطرَ خَدا نیکی و احسانِ و به خاطر خدای باز دارد، به راستی ایمانش را کامل گردانیده است.«

بخشش و یا خودداری از آن از پیامدهای دوستداشتن و خشم‌گرفتن است، زیرا دل فرمانروای جسم است، پس اصلاح دل اِصلاحِ جسم است و فساد دل سبب فساد و تباهی جسم است.

پس هرکس که دوستداشتنش به خاطر خدا و خشم‌گرفتنش به خاطر خدا و بخشش یا دریغ‌ورزیدنش برای رضای خدا باشد، نه به امید پاداش به کسی می‌بخشد و نه به خاطر چشم داشت ستایش ایشان و نه به خاطر محبوبیت و انگشت‌نما شدن میانِ مردمان، (بلکه تنها رضای خدا را درنظر دارد ). و دریغ‌ورزیدن او به خاطر کینه و دشمنی بر سر مال دنیا نیست و به خاطر علاقه و دلبستگی به مال و ثروت نیست، بلکه از کسی دریغ می‌ورزد که او را از فرمان‌بردن و اطاعت از دستورِ خدا باز دارد. بنابراین، با این کار ایمانش را کامل گردانیده است و به مقام مؤمنی راستین دست یافته است، و فرمان

خدای تعالی را بکار برده است که (قل ان صلاتي و نسكي و محياي و مماتي لله رب العالمين) ( ). «بگو در حقیقت نماز من و سایر عبادات من و زندگی و مرگ من برای خدا، پروردگار جهانیان است.«

هنگامی که این دوستی و محبت او را وا میدارد که به برادر دینی اش در نیازمندیهای دنیوی یاری برساند، چه برسد به این که از او دریغ ورزد و یا این که به او ستم رساند یا او را بیازارد، رسول گرامی صلی الله علیه و سلم آن را چنین بیان فرموده است: «لاَ تَحَاسَدُوا وَلاَ تَنَاجَشُوا وَلاَ تَبَاغَضُوا وَلاَ تَدَابَرُوا وَلاَ يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ وكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا. المُسْلِمُ أَخُو المُسْلِمِ لاَ يَظْلِمُهُ وَلاَ يَخْذُلُهُ وَلاَ يَحْقِرُهُ. التَقْوَى هَهُنَا، التَقْوى هَهُنَا - وَيُشِيرُ إِلى صَدْرِهِ - بِحَسْبِ امْرِئٍ مِنَ الشَرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ المُسْلِمَ كُلُّ المُسْلِمِ عَلَى المُسْلِمِ حَرَامٌ دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ»( ). «به همدیگر حسد نورزید و رقابت ناروا نکنید و باهم دشمنی مکنید و بر خرید و فروش یکدیگر خرید و فروش ننمایید. ای بندگان خدا! برادر همدیگر باشید، در حقیقت مسلمان برادر مسلمان میباشد، به او ستم نمیکند او را خوار نمیگرداند و او را حقیر و کوچک نمیشمارد، تقوی و پرهیزگاری اینجاست –و به وسینهٔ مبارکش اشاره فرمود – با توجه به موقعیت هر انسانی زشت و ناروا است که برادر مسلمانش را تحقیر کند و کوچک شمارد، و تمام آنچه که به مسلمان تعلق دارد بر مسلمان دیگر حرام است: از جمله ریختن خون او، خوردن مال و ثروت او و سخن گفتن از ناموس او.«

هیچ تردیدی نیست که این صفتها و خصلتهای نیک که رسول گرامی صلی الله علیه و سلم در این حدیث صحیح ترسیم فرموده است، محبت و دوستی را تقویت و نیرومند و پابرجا میگرداند.

و از این قبیل حدیثی است که مسلم از ابوهریره رضی الله عنه آن را روایت کرده است که رسول خدا صلی الله علیه و سلم فرمود: «حَقُّ المُسْلِمِ عَلَى المُسْلِمِ ستٌ. قِيلَ: مَا هُنّ يَا رَسُولَ اللّه؟ قالَ: إِذَا لَقِيتَهُ فَسَلّمْ عَلَيْهِ وَإِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ وَإِذَا اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ وَإِذَا عَطَسَ فَحَمِدَ اللّهَ فَسَمّتْهُ وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ وَإِذَا مَاتَ فَاتّبِعْهُ.«

»حق مسلمان بر مسلمان شش چیز است، گفتند یا رسول الله ﷺ آنها چه میباشند؟ فرمود: چون به او رسیدی سلام کن. هنگامی که ترا دعوت کرد، دعوتش را بپذیر. و چون ترا نصیحت کرد، نصیحت و اندرز او را بپذیر. و هنگامی که عطسه کرد و خدای را سپاس گفت، او را دعا کن (و بگوی یَرْحَمُکَ اللّهُ) و چون بیمار شود از او عیادت کن، و چون فوت کرد جنازه اش را تشییع کن.

از نشانههای این محبت آن است که به حال و وضعیت برادر دینیات بسیار توجه نمایی و دربرآوردن آنچه که میخواهد، تلاش کنی و او را یاری نمایی. اگر در این موارد تلاش و کوشش به عمل آوردی، به راستی به شایستهترین و بزرگترین طاعات و عبادات به درگاه خداوند تقرب جُستهای.

و پا از این فراتر نمی‌گذارم، و تنها به آنچه از ابن عباس روایت است بسنده می‌کنم، و آن این است که ابن عباس در مسجد پیامبر صلی الله علیه وسلم معتکف بود، مردی نزد او آمد و سلام کرد، سپس نشست، ابن عباس به او گفت ای فلان! ترا اندوهگین و دلتنگ می‌بینم، آن مرد گفت: آری، ای پسر عموی رسول خدا ! ﷺ فلانی بر من حقی و طلبی دارد و سوگند به حرمت و بزرگی این مَرقد (تربت پاک رسول خدا صلی الله علیه وسلم ) توان و قدرت پرداخت آن را ندارم، ابن عباس گفت: آیا می‌خواهی در باره‌ای تو با او گفتگو کنم؟ گفت: آری، اگر دوست داری که حرف بزنی، ابن عباس کفشش را پوشید و از مسجد بیرون آمد، آن مرد گفت :آیا فراموش کرده‌ای در چه موقعیتی قرار داری؟ (اعتکاف) ابن عباس در حالی که اشک در چشمانش پدیدار شده بود جواب داد: خیر، یادم نرفته است، اما از صاحب این مرقد صلی الله علیه وسلم شنیدم – هرچند از شنیدن آن بسیار نگذشته است – که فرمود: «مَنْ مَشَى فِيْ حَاجَةِ أخيه وَبَلَغَ فيْهَا كَانَ خْيراً لهُ منْ اعْتكاف عَشَرَ سنيْنَ وَمَنْ اعْتَكفَ يَوْماً ابْتِغاءَ وَجْهِ اللهِ تَعَالى جَعَلَ اللّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النّارِ ثَلَاثَة خَنَادِقَ، كُلُّ خَنْدَقٍ أَبْعَدُ مِمَّا بَيْنَ الْخَافِقَيْنِ.«

هرکس به دنبال نیاز برادرش رود و برای رفع آن تلاش نماید، این کار از اعتکافِ ده سال ثوابش بیشتر است، و اگر کسی روزی برای رضای خدا اعتکاف کند خداوند به اندازه سه خندق میان آن شخص با دوزخ فاصله ایجاد می‌کند و او را از دوزخ دور می‌دارد، و فاصله هر خندق دورتر از فاصله مشرق و مغرب است.

چه چیزی است که انسان را به این حدیث بزرگ وابسته می‌گرداند که به راستی آن حدیث دعوتِ روشن و آشکاری است برای استواری و ثابت‌ماندن پایه‌های دوستی و محبت و سر و سامان دادنِ اسلام به پیوندهای برادری هرچه زیباتر و شایسته‌تر.

و در همان حال، اسلام برای انواع خدمات عمومی که مسلمانان جهت خدمت به همدیگر فراهم می‌آورند، عالی‌ترین پاداش را نهاده است، و این ابن عباس است که اعتکاف را در مسجد رسول خدا صلی الله علیه وسلم رها می‌کند در حالی که کاملاً به ثواب بزرگ آن و درجات عالی آن واقف است، اما به خاطر دستگیری از برادری که از او یاری می‌خواهد، از این ثواب عظیم دست می‌کشد.

ای خواننده گرامی! به راستی پیامبر خدا صلی الله علیه وسلم به ما آموخت که دیگران را دوست بداریم و چگونگی این دوست‌داشتن را برای ما روشن فرموده است، و نیز راهکارهای مفید برای استواری و دوام آن دوستی ترسیم و بیان فرموده اند. آنحضرت صلی الله علیه وسلم به ما لبخندزدن و تبسم را آموخت، زیرا لبخند بیانگر محبتی است که در دل ما پنهان است.

مگر رسول خدا ﷺ گوینده این قول نیست که «وَتَبَسُّمُکَ فِيْ وَجْهِ أَخِيْکَ صَدَقَةٌ» «لبخند تو در روی برادرت بسان صدقه و احسان است» و آیا این فرمودۀ رسول خدا صلی الله علیه وسلم نیست که

«إِنَّكُمْ لَا تَسَعُونَ النَّاسَ بِأَمْوَالِكُمْ وَلَكِنْ لِيَسَعْهُمْ مِنْكُمْ بَسْطُ الْوَجْهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ»؟ «پس شما نمی‌توانید با ثروت و اموال خویش خوب به مردمان برسید، ولی گشاده‌رویی و خوی نیک شما برای ایشان مفید و سودمند است، مگر به ما نیاموخت که محبت ما تنها برای خدا و در راه او باشد؟

این محبت راستین و بی‌شائبه است که در دل لبخند را ایجاد می‌کند و لبها به واسطه آن باز می‌شود و در پی آن با برادر دینی‌ات با روی گشاده و درخشان رویاروی می‌گردی، به راستی که ثروت به تنهایی برای جلب محبت مردمان و دلجویی از آنان کافی و بسنده نیست، زیرا اثری که لبخند دارد آنچنان است که مال و ثروت توان و قدرت آن را ندارد .لبخند توان آن دارد که به دل راه یابد و بر احساسات و عواطف چیره گردد.

به راستی که رسول ناصح و دلسوز صلی الله علیه وسلم ترا به خوشرویی فرا خوانده است تا بر محبت و دوستی چیره شوی و مالک آن گردی، و مردمانی هستند که هرگز نمی‌خندند و چون با مردمان دیگر رویاروی می‌گردند، چهره درهم می‌کشند و تبسم نمی‌کنند، اینان به نیکی عادت ندارند و بدان توجه نمی‌کنند، و به راهنمایی‌های راد مرد بزرگ بشریت و سرور مسلمانان–رسول خدا ﷺ –نیز توجه ندارد، بی‌گمان پیامبر عظیم الشأنِ ما بزرگترین مربی و آموزگار بشریت است، و آن حضرت صلی الله علیه وسلم می‌دانست که پیوند محبت پایدارترین و استوارترین پیوندها در زندگی انسان است هم او ﷺ با فطرت خدادادی و بدانچه که خدای او را ادب آموخت–و چه نیک ادب آموختنی– می‌دانست که محبت و مهربانی و دوستی و برادری به تنهایی می‌تواند که جامعه‌ای نیرومند و متحد و پابرجا بسازد. بنابراین، تو را به سوی محبتی که دلها را صیقلی می‌دهد و صاف می‌گرداند، فرا می‌خواند، پس محبت در تو می‌جوشد و تو وسیله‌ای می‌جویی تا دوست بداری و دوستت بدارند، پیامبر صلی الله علیه وسلم نیز از تو خواست که با گشاده‌رویی و لبخند با برادرت برخورد کنی. به راستی این لبخند و گشاده‌رویی اثری سحرآمیز دارد، خوشرویی و مهربانی با مردمان را بیازمای و امتحان کن، و چون بر لبت خنده‌ای خوش باشد، هرگز از این تجربه و آزمایش پشیمان نخواهی شد.

به راستی این لبخند از آن توانایی برخوردار است که انسان‌های اخمو و ترش‌رو را رامت گرداند، و بدانوسیله به درون انسان‌ها راه می‌یابی و به دل آنان نفوذ می‌کنی، در نتیجه ارتباط و همبستگی ایجاد می‌گردد.

از کتاب: محبت پیامبر در قلب یارانش

# علي عزت بيګوويچ:

اقتباس: قصة الاسلام سايټ

# د علم، سياست او قيادت د اسمان ځلانده ستوری

## زوکړه او زده کړه:

علي عزت بيګوويچ د بوسنيا په شمال لويديزه سيمه (بوساناکروبا) کې په **۱۹۲۵**م کال کې په يوې متدينې کورنۍ کې زيږيدلی وو. [بالقان ته اسلام د عثماني خلافت په لاس په **۱۳۸۹**م کال کې د کوسووا د مشهورې جګړې په پايله کې ننوت. په خپله بوسنيا ته اسلام په **۱۴۶۳**م کال کې ننوت. د دې سيمې مسلمانان د بوشناق په نوم پيژندل کيدل. بوسنيا خوا او شا **۴۱۵** کاله د عثماني خلافت برخه وه. پر دې سيمې د عثماني خلافت د واکمنۍ له پای ته رسيدو وروسته د دې ځای مسلمانان له پرله پسې وژنو او نسل ختمونې سره مخ شول. دوی نه يوازې ووژل شول، بلکې د اسلامي شعايرو د تر سره کولو حق هم ترې واخيستل شو.

علي عزت په يوې متدينې کورنۍ کې رالوی شو، د سراييفو (د بوسنيا د پايتخت) د ښار په ښوونځيو کې يې زده کړې وکړې تر دې چې په **۱۹۴۳**م کال کې يې مينځنۍ زده کړې بشپړې کړې او د لوړو زده کړو له پاره په پوهنتون کې شامل شو. په **۱۹۵۰**م کال کې د قانون له څانګې فارغ شو او په **۱۹۶۲**م کال کې يې د دکتورا سند تر لاسه کړ. په **۱۹۶۴**م کې يې د اقتصاد په څانګې کې سند تر لاسه کړ. د مورنۍ ژبې تر څنګ يې په الماني، فرانسوي، او انګليسي ژبو ليک، لوست او خبرې کولی شوې او په عربي ژبې هم پوهيده.

## فکري ژوند:

په **۱۹۴۰**م کال کې يې د سن له کموالي سره، سره د مسلمانو ځوانانو ديني او سياسي تنظيم په جوړولو کې ونډه واخيسته. شپږ کاله وروسته د کمونيستي حکومت له خوا د (مجاهد) نومي جريدې په خپراوي کې د مرستې په تور ونيول شو. د ده له خوشې کيدلو وروسته بيا کمونيستانو د مسلمانو ځوانانو پر ضد ګامونه پورته کړل تر دې چې په **۱۹۴۹**م کال کې يې د دې تنظيم څلور د سر کسان اعدام کړل. په **۱۹۸۳**م کال کې يو وار بيا علي عزت د (اسلامي اعلاميې) نومي کتاب د ليکنې او خپرونې په سر ونيول شو او ايله په **۱۹۸۸**م کال کې خوشې کړی شو. د مسلمانو ځوانانو ټولنې په پيل کې د محصلينو د فکري سمون او ويښتيا به له پاره کار وکړ او بيا يې له خبرو د عمل په لور ګام واخيست او د دوهمې نړيوالې جګړې پر مهال يې اړو وګړو ته مرستې او خدمتونه وړاندې کړل.

علي عزت لا د پوهنتون محصل وو چې د اخوان المسلمون، د هند او پاکستان او اندونيزيا د اسلامي حرکتونو ادبيات يې ولوستل. د پوهنتون د محصلينو په مينځ کې يې فعاليت کاوو او هغوی ته يې د بوسنايي ولس او بالقاني مسلمانانو د لوړتيا لاره ورښودله.

د ۱۹۴۱م کال په اپريل کې د هيټلر نازي پوځ يوګوسلاويا ونيوله. له نازي فکر اغيزمنو ځينو بالقانيانو د )أشتاشا ( په نوم نازي ګوند جوړ کړ. نازيانو غوښتل چې مسلمان محصلين له اغيز لاندې راولي مګر علي عزت او د مسلمانو ځوانانو د ټولنې نورو ملګرو په ګډه د دې مخه ونيوله او مسلمان محصلين يې په دې پوه کړل چې نازي فکر يو اسلام دُښمنه فکر دی او نازي خوځښت د مسلمانانو ضد خوځښت دی، ځکه نو په هيڅ صورت کې هم له نازي خوځښت سره د مسلمان يو ځای کيدل روا نه دي.

کله چې يوګوسلاويا له الماني پوځ څخه ازاده شوه، او د ۱۹۴۵م کال په وروستيو کې د کمونيزم کومې ته وغورځيده، علي عزت او ملګري يې هماغسې د کمونيزم په وړاندې ودريدل لکه د نازيانو پر وړاندې چې دريدلي وو. همدا لامل وو چې کمونستانو په وار، وار ونيوه. کمونستان د مسلمانانو په هکله له شاهي نظام او نازيانو څخه ډير ظالمان وو. مسجدونه او مدرسې يې بندې کړې او په کلبونو، ميخانو، نڅا ځايونو يې بدل کړل قرآن يې بند کړ، مسلمان عالمان او متدين وګړي يې بنديان، شکنجه، تبعيد او ووژل.

دې نيونو او ځورونو دا مسلمان ځوان نه يوازې دا چې مات نه کړ، بلکې د ده د مبارزې هوډ يې لا پياوړی کړ. څو واري کمونستانو ونيو، مګر د رب په مرسته به يې ايمان او هوډ ورځ په ورځ پياوړی کيده.

د يوګوسلاويا د واکمن، ټيټو )]۷ مې ۱۸۹۲کروشيا-۴ مې ۱۹۸۰م سلووينيا، د يوګوسلاويا کمونيست دکتاتور (چې د مصر د عبدالناصر (۱۵ جنوری ۱۹۱۸م- ۲۸ سپتمبر ۱۹۷۰م، چې له ۱۹۵۲ څخه تر مرګه پورې د مصر مستبد واکمن وو ) ملګری وو] دوره د علي عزت له پاره تر ټولو بده دوره وه. کله چې عبد الناصر د ليدنې پر مهال له ټيټو څخه د علي عزت په هکله وپوښتل، هغه ځواب ورکړ چې: دا ډير خطرناک سړی دی. ان د مصر له اخوان المسلمين څخه هم ډير خطرناک دی، دی په دې نظر دی او د دې غوښتنه کوي چې په هر هيواد کې چې مسلمانان اکثريت وي بايد اسلامي حرکت يې واک په لاس کې واخلي.

## سياسي ژوند:

په ختيځې اروپا او په خپله په شوروي کې د کمونيستي نظامونو له شړيدو وروسته يوګوسلاوي کمونيستي ګوند اړ شو چې سياسي تعدد ته اجازه ورکړي. علي عزت له دغه فُرصت نه په ګټې اخيستلو له خپلو ۴۰ ملګرو سره په ګډه د ديموکراتيک عمل ګوند (Stranka Demokratske Akcije) جوړ کړ. په ولسمشريزو ټاکنو کې يې ونډه واخيسته او د ۱۹۹۰م کال په نومبر کې د بوسنيا هرزوګوينا ولسمشر شو.

له یوګوسلاویا څخه د کرواتیا او سلووینیا د جلا کیدو پر مهال بوسنیا هم د یوې ټولپوښتنې په پایله کې په غوڅ اکثریت (۶۳٪) له یوګوسلاویا څخه خپلواکي واخیسته. مګر صلیبي ګاونډیانو یې دا پایلې و نه منلې او د مسلمان بوسنیایي ولس پر ضد یې ظالمانه او وحشیانه خونړۍ مذهبي او توکمیزه جګړه پیل کړه. په دې جګړې کې نه یوازې د صربیا متعصب ارتودوکس مسیحیان وجنګیدل، بلکې د اروپا په زرګونو افراطي مسیحیانو هم په دغې وحشیانه جګړې کې برخه واخیسته. د کروشیا کاتولیک مسیحیان هم د بوسنیا پر ضد جګړې ته ننوتل او غوښتل یې د بوسنیا کروات میشته برخه له بوسنیا څخه بیله کړي. دوی غوښتل بوسنیا تجزیه کړي چې صربي میشته برخه یې له صربیا او کرووات میشته برخه یې له کروشیا سره ونښلوي.

علي عزت بیګوویچ اصلاً د جګړې پلوی نه وو. هغه نه غوښتل چې د هیواد ځمکه او ولس یې د جګړو جهنم ته ننوځي او همدا لامل وو چې په هماغه پیل (۱۹۹۱م) کې یې د یوه منصفانه فدرالي نظام طرحه هم وړاندې کړه. دې طرحې کولی شول هم یوګوسلاویا له شړیدلو وساتي، او هم د جګړې مخه ونیسي. مګر جګړه د صلیبي قسم خوړلي دُښمن یوازینی انتخاب وو، هغوی یوازې جګړه غوښتله.

د بوسنیا د مسلمان ولس پر ضد د صربیا د ارتودوکسو او د کروشیا د کاتولیکو ګډه صلیبي جګړه پیل شوه .مسجدونه او کورونه یو ډول له خاورو سره برابر شول. په سوونو زره کوچنیان او لویان په ډله ایزه توګه له تیغه تیر کړی شول. تر سلو زرو تور سرې بې پته کړی شوې. او دا هر څه د لټ او ناپوه مسلمان انسان، او پوه او دوه مخي کافر انسان په مخ کې تر سره شول. صلیبي اروپا او امریکا نه یوازې د جګړې پر مهال د بوسنیایي انسان د ژغورنې هڅه و نه کړه، بلکې په دې بهانه یې پرې د وسلو اخیستلو بندیز هم ولګاوو چې پر دې کلابند شوي او مظلوم انسان به د وسلو خرڅول د لا نورو وینو د تویېدنې لامل شي. مګر له دې ظلمونو او وحشتونو او ۴۴ میاشتنۍ محاصرې سره، سره د علي عزت له مشرۍ لاندې مسلمان بوسنیایي ولس د دې صلیبي وحشت په وړاندې سینه سپر کړه.

علي عزت بیګوویچ د یوه پاخه او زړور قائد په توګه د دفاعي جګړې تر څنګ سیاسي هڅې هم له پامه و نه غورځولې. هغه سیاسي هڅو ته هم ادامه ورکړه، د بوسنیایي ولس ناورین او هغه ظلمونه یې هم د نړۍ مخې ته کیښودل چې د صربیانو او کرواتانو له خوا پرې کیدل. مګر په عین حال کې یې دا هم په ډاګه ور ته ویل چې بوسنیایي ولس به هیڅکله هم سر ټیټ نه کړي. نوموړي د ۱۹۹۴م کال په ډیسیمبر کې یې د اروپا د امنیت او همکارۍ د ټولنې غونډې ته چې په بوډاپیسټ کې جوړه شوې وه، وویل:

دا جګړه سخته ده، مګر ماتې خوړل پکې لا سخت دي. په تیرو پنځوسو کلونو کې هیڅ دفاعي جګړه هم له ځانه دفاع کوونکو نه ده بایللې او زه د دې له پاره هیڅ دلیل نه وینم چې مونږ یې بایلو. هیڅوک او هیڅ بشري ځواک نه شي کولی چې د بوسنیا یو سل او پنځوس زره پوځیان د وسلې کیښودلو ته اړ کړي. ټولو ته مې دا مشوره ده چې زمونږ په خاطر او د ځان په خاطر دا حقیقت په پام کې ونیسي...

په پای کې یې د لوی خدای په مرسته او د لاس په سر بوسنیایي ولس د سربښندنې او صبر په مټ وکولی شول چې د جګړې معادله سرچپه کړي او صربي-کرواتي صلیبي یرغل په شا وتمبوي. په دې وخت کې امریکا او اروپا رامینځ ته شول او پر بوسنیا یې یوه ظالمانه سوله تحمیل کړه. علي عزت بیګوویچ د سولې د تړون د لاسلیک پر مهال وویل:

)زه خپلو خلکو ته وایم چې دا یوه عادلانه سوله نه ده، مګر د جګړې له دوام څخه ډېره عادلانه ده. په داسې یوه وضعیت کې لکه چې دا اوس دی، او په داسې یوې نړۍ کې لکه چې دا اوس ده، له دې غوره سوله نه شوه تر لاسه کیدی. خدای شاهد دی چې مونږ د خپلو خلکو او خپل ولس له سره د ظلم کمولو له پاره هر هغه څه وکړل چې زمونږ په وس کې وو.(

**علمي ژوند**:

علي عزت بیګوویچ، په یوه وخت کې قانونپوه، اقتصاده پوه، مسلمان دعوتګر، پوخ سیاستوال، زړور قائد او له دې ټولو پورته یو متواضع انسان وو. نوموړي له دې ستړي ژوند سره، سره ډېر کتابونه هم لیکلي چې له دې ډلې یې لاندې څو د یادونې وړ دي:

- 1 اسلام د ختیځ او لویدیځ تر مینځ
- 2 د ازادۍ په لور زما تیښته
- 3 اسلامي اعلامیه
- 4 په کمونستي دولتونو کې مسلمان اقلیتونه
- 5 د اسلامي نهضت پر وړاندې خنډونه

**وفات**:

علي عزت بیګوویچ له لسګونه کلونو مبارزې وروسته د **۷۸** کلونو په عمر د **۲۰۰۳**م کال د اکتوبر په **۱۹**مه نیټه له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې. انا لله وانا الیه راجعون. د ده ژوند له یوې مخې له شعورانه مبارزې، سربښندنې او ستړو ستومانو ډک وو. نوموړی د خپل ژوند په هکله وایي:

که په دُنیا کې بل ژوند را ته وړاندیز شي، رد به یې کړم، مګر که له سره تولد شم، بیا به هم هماغه ژوند غوره کړم چې تیر کړی مې دی.

**سرچینې**: قصة الاسلام ویب سایټ

http://islamstory.com/ar/%D۸٪B۹٪D۹٪۸۴٪D۹٪۸A_%D۸٪B۹٪D۸٪B۲٪D۸٪AA_%D۸٪A۸٪D۹٪۸A%D۸٪AC%D۹٪۸۸٪D۹٪۸۱٪D۹٪۸A%D۸٪AA%D۸٪B۴

د علي عزت په هکله جوړ شوی مستند فلم http://www.youtube.com/watch?v=۰Z-JJJV-isM